بسم الله الرحمن الرحیم

## سرمقاله :

# دمصریانو پٔه ایز شهادت داسلامي امت بل ازمیښت !

اسلامي امت خو هسې هم لـه بلامصیبتونواود کفري هیوادونود ګواښونوسره مخ دی ،نړدي شپږ،ولسیزو فلسطیني مسلمانان و کړول، دریو لسیزو افغانستان کې مسلمانان اوشاوخوایوې لسیزه دعراقیانو ګریبان پـه اوښکولوند کړ ،دنړۍ مسلمانانو لاددې هیوادونوپه ماتم اوویر ساندې ویلې چې مصر کې نظامیانو (ډاکترمحمد المرسي) په مشرۍ دمصر اسلامي حکومت راوړ اوه اودمسلمانانو زړونه یې بیاپه تېره نیزه ووهل .

نـږدې لـه دوومیاشـتونه پـس چـې د(محمدالمرسـی) قـانوني حکومـت نـړول شـوی،ددې هیـواد مسلمانانوپر له پسي لاریونونه په لاره اچولي ، تر څوبیر تـه یې سیاسي او قـانوني حقوق اعاده شي ،خودمصر پوځیانوپرې دماشیندار وججورې تشې کړې او دمصر دمسلمان ولس دحریت او سیاسي آزادۍ غږ یې پـه ګولیوخاموش کړ، تر ټولو ترخه پیښه چې مصري مظاهر چیـان پکې پـه ډلـه ایز ډول شـهیدان شول، دروان ۲۰۱۳ز کال داګست دمیاشتې دڅار شنبه دورځې ظالمانه قتل عام و،چې نه یوازې سرې بلکې (۳۰۰)پـاک لمنې بې ګناه ښځې او معصوم ماشومان مصري پوځ دټولونړیوالووضعي اواسلامي قوانینوخلاف پـه خپلـو خیمو کې په ډله ایزډول په اور کې وسوځول اودژوندانه له خوړلنو یې محروم کـړل ،دپـریس تلویزوني چینـل اواخوان المسلین داحصایې لـه مخې پـه همـدې ورځ نښـتو کښـې دري زره اوپنځـه سوه کسـه مسـلمانان دمصـري پوځیـانو لخوا شـهیدان او لـه لسو زروڅخـه زیـات ژوبـل شـوي دي. د۴۴ ورځوراهیسې مصـري مسلمان ولس مظاهرې کولې اواعتراضي کمپونه یې جوړ کړي وو چې ددې غیر انساني انجام سره مخ شول .

مصر کې داګست په ۲۴نېړه وحشتناکه انساني فاجعه وه ، سکندریه ، پورټ سعید ، النصر اوځینو نوروښارونو کې هم فوځ پـه بې وسلې مسـلمانانو خونړې بریدونـه کول ، خو قـاهره کې دوهمـه کـربلاوه ؛ سر کونه ، لارې او کوڅې لـه شهیدانو ډ کې وې اولـه هرلورې دټپیـانو آهونـه جګیـدل اودمصر پوځ پرمصري شهیدوجسدونو تیل پاشل او په مړینه یې په اور سوځول .داپیښه دخپل عظمت په تناظر سړي ته د(اصحاب الاخدود)هغه پیښه ورپه یاده وي ،چې هلته هم داسې ظالمانه چلند وشواو بې دینو خلکویې سیل کاوه لکه چې الله ج فرمايي :

قُتِلَ اَصۡحٰبُ الۡاُخۡدُوۡدِ ﴿۴﴾ النَّارِ ذَاتِ الۡوَقُوۡدِ ﴿۵﴾ اِذۡ هُمۡ عَلَيۡهَا قُعُوۡدٌ ﴿۶﴾ وَّ هُمۡ عَلٰى مَا يَفۡعَلُوۡنَ بِالۡمُؤۡمِنِيۡنَ شُهُوۡدٌ ﴿۷﴾ وَمَا نَقَمُوۡا مِنۡهُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ ﴿۸﴾ الَّذِىۡ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ شَهِيۡدٌ ﴿۹﴾ (البروج۹)

له بده مرغه چې نن سباد نړۍ مسلمانان ددې سربيره چې (۵۷)هيوادونه ددوئ ملکيت دی اوڅښتن تعالی ور ته دځمکې طبعي معدنيات او ذخاير په واک کې ور کړي ، کفار و ته اړ اوددوئ محتاج دي ،داسې مطبوعاتي راپور نه شته چې په ډاګه يکې دمصر ددې پيښې پر اته ابعاداو ژورې ريښې تر ستر ګو کيږي اوداسې جو تـوي چې دمحمدالمرسي دحکومت نړولـوطرح پـه اسـرائيلو کې جـوړه شـوي اويهودواونصار اوودمصر پوځ ته د دې په بدل کې غټ باج منلی .

دلته چې خبره دمسلمه امت ، اسلامي او اخلاقي ده ،نو اسلامي امارت په ډير جر أت سره دمصري پوځ اوددوئ دخارجي طراحانودادسيسه پـه کلکوټکووغندلـه اولـه اسـلامي کنفـرانس او ملـل متحد،اسـلامي هيوادونو او او لسونواونورونهادونونه يې وغوښتل ،چې دامسئله پـه لمړيتوبونو کې راولي ،امريکـايي او فرانسوي مشرانوهم دارو پايانوغوندې خپل غبر ګون اوظاهري مخالفت وښود، خوله بده مرغه چې نه اسلامي کنفرانس اونه هم کوم ستر اسلامي هيواد دمصري مسلمانانوسره کوم ډول خواخوږي وښوده.

مونږ چې دمصر له ولس سره درسول الله صلی الله عليـه وسلم ددې مبار کې لار ښوونې پـر بنسټ چې فرمايي ((المؤمنون کرجل واحد ان اشتکی رأسه تداعی له سائر الجسد بالحمی والسهر. رواه مسلم)) يوازې ديني اواسلامي خواخوږي لرو اوهم دې هيواد اوولس ته ددې هيواد دستر فاتح حضرت عمروبن العـاص رضـی الله عنـه لـه فاتحانـه تاريخـه ګورو!پر مسـلمانانوغږ کووچې کـه تاسـونن دمصـر پر ظلم چوپتياوښوده اوددې مسلمان ولس سره مو خواخوږي ونه کړه، نو نه يوازې داچې له الهي عذابه به ونه ژوغورل شئ !بلکې يوه ورځ به تاسوهم دداسې حالت سره مخ شئ! چې خواخوږی به مونه وي اودنهيلۍ څپيړه به مومخ سور کړي .

اسلامي امارت چې له دخپل دين او اسلامي خاورې دخپلواکۍ لپاره ديوه ستر طاغوت سره پـه تش لاس پـه جهادبوخت دی ،بياهم پـدې ناګواره شرايطو کې دمصري مسلمان وروړ خواخوږي پرځان پوربولي ،راځئ ټـول مسـلمانان پـه يـوه خولـه او يـوه غږ د(بنيـان مرصـوص)په څير دداسـې نړيوالـو اسـتبداد ګرومخکې ودريږواونـور ددې مسـلمان ورور مظلـومې اوښـکې پـه خپـل ذات البينـي وحـدت اواسـلامي مواخـات وچـې کړو!تر څويوداسې مسلمان دنړۍ پرمخ پاتې نشي چې کفاريې وځوروي اوخپله صليبي سينه پرې يخه کړي !

# وضعیت فلاکت بار مصر

# دیموکراسی را به جهانیان تعریف کرد

الیاس عاصم

ماقبلا به این باور بودیم که نظام به اسم دیموکراسی نوع از دیکتاتوری مدرن است که عوض یک تن دیکتاتور چند تن از دیکتاتورهای سرمایه دار را برملت ها مسلط می نماید ، وهمه نظام مملکت برنفع چند تن فرعون صفتان چرخ می خورد ، به همین دلیل است که گاهی هم نظام دیموکراسی با نظام اسلامی خلط شده ، همه دیموکرات های جهان آن را نه پذیرفته و بخاطر از بین بوردن آن نظام همه اصول بشریت را پامال نموده و علیه آن نظام دسیسه ها چیده اند ، همین اکنو وضعیت مصر آشکارا ثابت ساخت که ، هرگاه اگر دیموکراسی وسیله ءبرای اقامه قوانین اسلامی گردید ، آن دیموکراسی قابل پذیرش دیموکراتهای جهان نه بوده!!؟ و در راه از بین بوردن این گونه نظام دست به هر نوع ظلم وستم زده اند ، حالت مصر که یک سال قبل از دیکتاتوری حسن مبارک رهای یافت ، به سرکردگی حزب اخوان المسلمین که ازطریق همین دیموکراسی به اریکه قدرت رسید و اکثریت مطلق مردم مصر برای مدمت پنج سال محمدمرسی یکی از رهبران اخوان المسلمین را به حیث رئیس جمهور خویش انتخاب نمودند ،تمام تعریف دیموکراسی را برملامی سازد ، بعد از تغیر درمصر سالی نه گشت که از طرف اسرائیل و امریکا دست به دسیسه ء زده شد و توسط برانگیختن یک گروه کوچک سیکولرستها نظامیان آن کشور را وادار به آن نمودند که محمد مرسی را از قدرت کنار زنند ، بهانه ء را که در پیش گرفتند این بود که محمد مرسی نه توانسته درمدت یک سال کشور مصر را ازبحرانهای اقتصادی که زاده زمان حسن مبارک بود بیرون کشد ، این بهانه درحالی استفاده میشود که همین

سیکولرستها در مدت همین یک سال به چندین بار علیه نظام محمدمرسی تظاهرات را برپا نمودند و دست به شورشهای سرگرم کننده زدند ، تاباشد که نظام محمدمرسی متوجه ساختار اقتصاد کشور و راهای بیرون رفت از بحران نه شود ، نظامیان مصر که همان دشمنان سوگند خورده اسلام هستند و به دست آمریکا پرورده شده بودند ، نظام مرسی را درنیمه راه برهم زدند و زمینه را به یک بحران جدید که شاید همچو سوریه سبب آغاز جنگ داخلی درکشور مصر شود مساعد ساخت ، کارشناسان امور نظام اسلامی به این باور اند که اولا حزب اخوان المسلمین نیز اشتباهات را مرتکب شده ، زیرا مفکوره دیموکراسی زاده غرب هرگز با اسلام عزیز قابل مقایسه نیست ونه میتوان از همین طریق به اهداف ولای دینی نایل آمد ، اسلام بخاطر ساختار نظام افراد صالح ، باتقوا ، وباخدا می خواهد که امور مملکت اسلامی و ملت مسلمان را رهبری نماید ، ولی در سیستم دیموکراسی قاعده کاملا برعکس است ، افراد پولدار ، مفسد ، دزد ، خائنین و پرورده های غرب میتوانند خوب بدرُخشند و برملتها مسلط شوند ، اخوان المسلمین باید اصول رهبر کل ایشان امام حسن بناء را فراموش نه میکردند و بخاطر به قدرت رسیدن از مشی اصلی خویش منصرف نه میشدند ، ولی هرگاه که تنازل را پذیرفتن بازهم باید درمدت یک سال قدرت خود ، تصفیه را از نظامیان مصر آغاز می نمودند ، تادسیسه خنثا میشد و نیروه دسیسه باز باقی نه می ماند ، اکنون اخوان المسلمین یک راه نجات در پیش دارد وان این که باید پس به اصول دینی خود برگردد ، بخاطر نظام اسلام وسایل اسلامی را استفاده نمایند و از معامله گری ها با اهریمن صفتان ودشمنان مفکوره سیاسی اسلامی دوری جویند ، ملت مصر بعد از قربانیهای که در چند روز گشته دادند باید درک کنند که اگر همین قربانی ها در راه سالم مبارزه اسلامی داده میشود نتیجه بهتر به دست می آمد ،روی هم رفته با درنظر داشت وضیعت کنونی مصر ما همه معتقد به آن شدیم که سرلوحه نام دیموکراسی و جمهوریت هرگز مارا به اهداف شرعی خود رسانده نه میتواند ، حضرت پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم می فرماید : کسی که درمقابل قهر و ناراحتی مردم رضای خداوندمتعال را می جوید خداوند توانا بخاطر دفع شر مردم وی را کفایت می کند ، واگر کسی بخاطرخورسندی مردم خداوندمتعال را ناراض ساخت پس خداوندمتعال نیز وی را به همان مردم می سپارد .(مشکوة جلد۲ صفحه ۴۳۵) از حدیث فوق به وضوح

می رسد که رضای خداوند متعال قبلتر از همه باید مدنظر گرفته شود ، اگر زمانی قهر و غضب مردم با رضای خداوندبزرگ در تضاد قرار گرفت برماست که رضای خداوند جل جلاله را هرگز درمقابل شر و شورش مردم ترک نه نمایم ، ورنه روزی بهتر از محمدمرسی و اخوانیهای مصر نه خواهیم داشت ، علاج مسائل همه درسیستم اسلامی است ، سیستم های فرسوده غرب که برای ما روی نورسی آن جدیت معلوم میشود عین دیکتاتوری است ولی به صبغه مدرن آن ، مردم درکشور های غرب همه برده های مدرن هستند ، آنها فقط در راه شباع جوع بطن و اطفاء شهوت ازادی دارند دیگر در تمام سیستم



زنده گی خویش اعم از مادی ومعنوی فاقد همه ارزشهای والای کرامت انسانی هستند ، پس برماست که وضعیت ملل غرب را در آئینه روشن دین خود بنگریم پس تصمیم بگیریم که کدام دلیل و کدام ارجحیت است که ما را به ترک اصول دینی خود و پذیرفتن نظامی دیموکراسی غرب وامی دارد ؟ اگر ما دقیقا متوجه مشکلات مردم درغرب شویم ، حالت ملتهای جهان سوم یک برچند نسبت به آنها برتری و بهتری دارد .

جمیل مبړنی

# دزمري د ۲۸ نمانځنه دچاحق دی ؟

دهجري لمريز کال
دزمــــري دمیاشـــتې ۲۸
نیتــــه زمـــونږ دګـــران
هیوادافغانســتان پــه تـاریخ
کـې داتلـولی ، میړانــې ، حریـت
اوقربــــانی یوســـتریادګاردی چـــې
نمانځنه ، یادونه اودرناوی یې هرافغـان
دیـــوه ملـــي
فریضه ځای اومقام لري.

ځکه دنړۍ هغـه یـوه لویـه
یوه لویه امپراتوري چې په قلمرو کې یې لمر نه ډوبېده، پـه همدې ورځ د افغانانو پـه ایمـاني ځـواک اوجهـادي متـو ماتـه اوو شـړیده ، زمـونږ ننګیالیو اسلافو او میړنیو نیکونو دپیرنګـي طاغوت دری بیلابیل یرغلونه په لوړ شهامت او بې سارو قربانیو مـات او هرځل یې لـه شکسـت اورسوایي سره مخ کړل او پـه پـای کې په همدې نیټـه اتلو افغانانو پـه نړیـوال ډګر کې انګریـزان دخپلې ویاړمنې فتحې عظمت ته سلامي کړل او خپلواکۍ منلو ته یې مجبوروګرځول .

له شک پرته چې دانګریزانو په وړاندې دخپلواکۍ ګټلو په اوږدې معرکي کې دمقاومـت اوقربـانۍ اصلي لـوری هغـه مجاهدولس ووچې قیـادت اورهبري یې مخـامخ دیني عالمـانو اومتـدینو قومي مشـرانو کوله اوکـه دهغــه وخـت واکمنـو هـم پکـې برخـه اوونـډه لرلـه دفتوا اوهڅـونې مرجـع یـې افغــاني روحانیـت اودینـي عالمـان وو ، تـردې پـورې چـې

دهمدغو مجاهدو علماوو محوري رول او اصرارووچې دهغه وخت واکمن ( امان الله خان ) يې دخپلواکۍ اعلانولو ته جوګه او خاص جرأت يې وروبانبه ،هماغه وو چې دکابل دعيدګاه په تاريخي جومات کې دافغانستان علماوو امان الله ته دخپلواکۍ خول اوويا ړورپه سرکړاو په ډاګه يې ورته وويل چې دخپلواکۍ اعلان په ځغرده وکړه اوداسلامي شريعت له پلي کيدو مه پرشاکيږه.

خوداچې امان الله خان اروپاته اوږد شپږمياشتينی سفروکړاوداسلام دښمنانو يې ذهن دبې دينی په زهروومينځه کله چې هيوادته راستون شوپرته له دې چې د خپل مسلمان ملت ديني او کلتوري ارزښتونه درک کړي په داسې بيړنيو ګامونو اوپه اصطلاح ريفورمونو يې لاس پورې کړ چې ډيرژرد ملت له ديني او دوديز لوی غبرګون سره مخ شواودهغه روحانيت اوديني قشرچې يووخت يې ورته دغازي لقب ورکړی وو ورنه بيزاره اوپه خلاف يې دجهاد فتوا ورکړه !

دامان الله خان دترقی اوپرمختګ رومبني ګامونه او اصلاحات !!داوه چې هغه دکابل په مختلفو سيمو کې پوليس ودرول او د محجبو ميرمنو له سره يې د خنجکونو په واسطه چادريانې وغورځولې، د خلکو په مخ کې يې د خپلې ميرمنې له سره ټيکري وغورځاوه، اروپايي لباس او شپو خولۍ يې په ښوونځيو او دولتي ادارو کې جبري کړی وو ، د څلورو ميرمنو نکاح يې منع وګرځوله، هغه په عسکري نظام کې د ږيرې خريل جبري کړل، او تر ټولو مهمه دا چې د اروپا په سفر کې د ملکه ثريا سر لوڅي او د ميني ژوب انځوران په کافي شمېر کې خپاره شول. دامان الله خان همدغه ناکردي وي چې د ملت له لوري تجريد کړل شو ، پرخلاف يې مقاومت پيل شو اوباالاخره له هيوادڅخه وتلو اوتيښتې ته اړل کړل شو ، چې له شک پرته دادهغه له اسلام او دخپلواکۍ له روح سره جفا اودغرب د غلامۍ انجام وو.

**افغانان چاپه ۱ر۱م پرېښودل :**

دافغان ـ انګليس له دريمې جګړې شپيته کاله نه وو تيرشوي چې دنړی يوبل طاغوت دسوسياليزم ترغنـوان لانـدي ( دشـوروي اتحاد )منحوسولښـکروزمونږپه ګـران هيوادافغانستان يرغل وکړ، خودافغان ولس دتاريخي اوسرتاسري پاڅون اوديونيم ميلون قربانيو په نذرانه کولو سره په ۱۹۸۹کال کې دغه استعمارهم په افغانستان کې په ګونډواوتيښتې ته اړشول.

په ډېرتاسف چې دشوروي لښکرو دوتلو څخه ۲۴ کاله او دانګریزانو له شکست څخه ۹۴ کلونــه تیریــږي ، خــولاهم زمــونږولس داارامــی ، ســکون او پرمختــګ پرځــای یوځــل بیاداشغالګروترهجوم اوناپاک ښکیلاکي هوس او اختناق لاندي ګیـردي ، داځل دغـه میړنـی ولس دامریکااوسپین سترګي اوسنی برتانیا اوناټو دمستقیم تجاوزاوهجوم شاهد دي او ۱۳ کاله پوره شول چې دغه غربي استعمارد افغان ولس پـه وژلـو ، ټکولـو ، او هضـمولوبوخت دي اولايي هم زړه ندی سوړشوي.

خوداسې ښبې اونښـانې ښکاري چې غربې ښامار هم نوردافغانانوپـه لاس دګړوبیدو اوتیښتیدوپه حالت کې دي څکه شپه ورځ په دې لټه کې دي چې څنګه ځانته دتیښتي لار پیـدا کړي ، چـې لـه کابـل اداري سـره دامنیتـي تـړون روانـې نانـدری ، لـه ګڼو سـمیوڅخه دقواوویسـتنه اومهمومراکزوتخریب اوپـه سیاسي میـدان کې اسلامي امارت تـه دسولي اوروغي تمایلات يې برالامثالونه دي.

**داستقلال نمانځل :**

استقلال اوخپلواکۍ نمانځـل لـه شـک پرتـه پـه هغـه صورت کې چې زمونږ هیـواد ددې جوګه اوصلاحیت ولري اوداسې واکمنان پرې مسلط وي چې دخپلو داخلي اوخارجي امورو پرمخ بیولوکې استقلال اوحریت ولري اودملت دارادي تمثیلونکي ووسي اوپه یوې خبري کې که ووایو چې دامریکا ، انګریزانو اونورو.... حلقه بګوش غلامان نه وي ،نوپـه دې صورت کې که دزمري له ۲۸ څخه په رسمي ډول نمانځنـه کیـږي نوداباداافتخاراوویـاړخبره ده اوکـه څوک دغـه ډول مشـروعیت ونلـري، بلکـې ولسمشـر، معـاونین ، پارلمـان اوملـي اردو یـې مخـامخ دبرتانویانواودهغود حرامیانوپه رحم کرم اکمالیږي اوپه هیوادعملادهغوی قبضـه وي ، نوکـه په دغه حالت کې څوک داستقلال خبره پورته کوي اواوسنیو یرغلګروته متجاوزین نه وایي ، نودوی دي په خپله قضاوت اوپه ځان فیصله وکړي چې دوی دڅه ډول ضمیراووجدان څښتنان دي !!!

**غلامان خپله غلامي نه پېژني :**

دکابـل اوسـني واکمـن اوان ولسمشـریې پرتـه لـدې چې دامریکااوبرتانیـا پـه غلامـی وشـرمیږي اوعـارورتـه وبریښـي، پـه وازکـومي وایـي چـې دامریکـا ، انګلیسـتان ، ایـران

او هندوستان استخباراتي شبکې هره میاشت یوه نامعلوم مقدار پیسې دخاصو هدفونو لپاره ورته استوي اودوی پرې مزې اوچړچې کوي !

دکرزي دکورنیو چاروپخواني وزیران (یونس قانوني او حنیف اتمر ) خولدې حقیقت ثخه هم پرده پورته کوي چې په کابل کې ۱۲ هغه رسمي کلیساوې شتون لري چې دغربي هیوادونو د فشار اوپریمانه ډالروپه مقابل کې ورته اجازه ورکړل شوې ،قانوني دری کاله مخکې دزمري د۲۸ په مناسبت ویلي ووچې داخبره په او سنیو انګریزانو سخته بده لګیږي چې افغانان دهغوی نیکونوته اشغالګروواییې اودتیښتې اوشکست نسبتونه ورته وکړاي ، ان تردې چې په کابل دبرتانیادهغه وخت سفیرهم خپله ده اوکرزي ته شکایت کړی ووچې بایدددوی نیکونوته دجشن په دنمانځلو په مهال ناوړه نسبتونه ونشي.

**داستقلال جشن باید څوک وکړي ؟**

دانصاف خبره داده چې دزمري د۲۸ نیټې نمانځنه اوداستقلال جشن ترسره کول باید هغه افغانان ترسره اودافتخارځای وبولي چې همدا اوس هم دافغانستان داستقلال اوخپلواکۍ لپاره دوی جنګیږي اویرغلګربرتانویان اوامریکایان په ټنډه ټنډه ولي اودعبرت درس ورکوي ، دابه ډیردپیغوراوخجالت ځاي وي چې دانګریزانو تالیخټې راپورته کیږي اوداستقلال ګټلوپه ویاړ اوافتخارکې ځان شریک شمیري ،له شک پرته چې داکاردوی لوی خجالت ، شرمندګي اورسوایي ده ، دوی دې همداسې سرټیټې اودملت په وړاندې مختوري وي !



# د دفتر پر سر له جنجال وروسته





زلمی

په دې خو ټولـه نړۍ خبره شوه او ګڼې تبصرې پرې وشوې چې په قطر کې د طالبانو او امریکا ترمنځ د بیرغ او نامه پرسر د کرزي د ناغیړۍ له وجې جنجال راپورته شو، کوم چې د نړیوالو او افغان ولس د سولې په اړه د ټاکلو هیلو او لویو آرمانونو را روان کاروان یې په ټپه ودرولو، ټولې نړۍ په ځانګړي ډول افغان ځورېدلي او کړېدلي ولس دا هیله لرله چې له دې وروسته به د افغان ولس د وینو د هغه سیلاب چینه نوره وچه شي کوم چې د دیرشو کلونو راهیسي را روان دی! مګر متاسفانه چې داسې ونه شول!

دیوې باوري سرچینې له قوله په کومه ورځ چې په قطر

کې دفتر پرانیستل شو، پروګرام داسې و چې د پنجشنبې په ورځ یعنې د دفتر له پرانیستلو دوه ورځې وروسته به د امریکا د یو پلاوي چې مشري یې دافغانستان او پاکستان لپاره د امریکې د ولسمشر اوباما ځانګړي استازي ډوبینز کوله او د طالبانو د یو پلاوي ترمنځ لومړنۍ رسمي او علني ناسته تر سره کېږي، او دا خبره په همغه وخت کې د طالبانو د ویندویانو له خولې هم را ووته چې کېدای شي د دوی او امریکایي پلاوي ترمنځ د پنجشنبې په ورځ لومړنۍ ناسته تر سره شي، دا خبر نړیوالو رسنیو هم را واخیسته، ټول دېته په تمه وو چې د دغه ناستې اجنډا او سرټکي به څه وي، په څه باندې به خبرې کېږي؟ له طالب ویاندویانو نه څو څو ځله په دې اړه پوښتنې وشوې، په ځانګړي ډول الجزیره تلویزیون په ژوندۍ بڼه پوښتنې ترې وکړې مګر دوی په واضح ډول و نه ویل چې خبرې به په څه باندې کېږي! یوازې په دې یې بسنه کوله چې دا لومړنۍ ناسته ده یوازې د نظرونه تبادله به کېږي او له دې وروسته به بیا اصلي خبرې پیل کېږي.

امریکې په هغه سبا (د چهارشنبې په ورځ) خپل پلاوی قطر ته له طالبانو سره د لیدوکتو لپاره ولېږلو، د بیرغ او لوحې خبره یې هسې وړه او معمولي ګڼله، مګر طالبانو ته د بیرغ او نامه خبره د هغوی د سیاسي مرګ او ژوند حیثیت درلود؛ ځکه خوکله چې امریکایي پلاوي وغوښتل چې طالبان ورسره وګوري د ټولو توقعاتو او انګیرنو پر خلاف د طالبانو له غوږ ځواب منځ شول! هغوی ورته ویلي وو چې زمونږ او ستاسو ترمنځ به ناسته د لا اله الا الله محمد رسول الله او د اسلامي امارت د نامه تر سیوري لاندې تر سره کېږي، تر څو چې بیرغ او نوم نه وي هېڅکله لیده کاته نشي تر سره کېدای!

دا د سیاست په ډګر کې دامریکې په مقابل کې یو دیپلوماتیک سر ښندونکی برید وو چې طالبانو وکړ! په دې سره د امریکې د سیاسي غرور دنګه ماڼۍ را نسکوره شوه! او دا هغه څه وو چې امریکې یې په خوب کې هم تصور نشوای کولی؛ ځکه امریکه ځان د ټولې نړۍ خان بولي او د نړۍ غوڅ اکثریت یې په همدې بڼه پېژني، امریکې هېڅ فکر نه کولو چې دوی دې له یو چا سره د لیدوکتو هیله وکړي او هغه دې ورسره و نه ګوري؛ ځکه معمول داسې

دی چې نور خلک له امریکې سره د لیدو هیله کوي خو دا پریکړه بیا امریکه کوي چې له چا سره وګوري او له چا سره ونه ګوري! مګر دلته د دې پریکړې ابتکار طالبانو ترې واخیست!

امریکې ګومان کولو چې طالبان ټوکې کوي او یا هسې هغه د چا خبره ځان ګرانوي؛ ځکه خو یې بیا د لیدو کتو غوښتنه وکړه، مګر د طالبانو ځواب د معمول په څېر لنډ او غوڅ و! امریکایي پلاوی حیران په دې وو چې اوس به خپل حکومت او ولس ته څه وایي؟ دا خبره به ورته کوي چې طالبانو له مونږ سره و نه لیدل؟! دوی طالبانو ته ډاډ هم ورکړی وو چې اوس به سره کښېنو د بیرغ او نامه خبره به بیا وروسته سره هواره کړو، دا خو دومره غټه کیسه نه ده، اوس کرزی ډېر ګرم دی، چې هغه لږ سوړ شي بیا به دا مشکل سره حل کړو!

ځکه خو یې بیا بیا د لیدو کتو غوښتنه کوله، مګر پرته له کومې ګټې، تر دې چې خبره تر تهدید پورې هم ورسېده، آن چې وزیر خارجه یې جان کیري وویل: که طالبان د سولې خبرې نه کوي نو دفتر به یې وربند کړو! مګر طالبان چا له خپل دریځ نه په شا کولی شوای؟ د هغوی همغه ځواب و! د تهدیدونو په اړه هم خو را بې پروا وو، امریکې ته یې ویل چې مونږ یرېږو نه، یو مرګ دی په هغه پسې راوتلي یو، او د دا رنګه دښمن په لاس مرګ د خپل ځان لپاره د دنیا او آخرت ویاړ ګڼو، او که له قطر نه د وتلو خبره وي هم مونږ ته بې تفاوته ده؟ مونږ په دې ټینګ باور لرو چې ژوند او مرګ د الله جل جلاله په واک کې دی، د خیر او شر پېښېدو پرېکړې هغه کوي! نوره خبره تر تاسو پورې اړه لري چې څه کوئ!!!

امریکایي پلاوی تر څلوورو ورځو پورې په قطر کې په دې هیله پروت وو چې ګوندې طالبان سبا ورسره وګوري، که سبا نه وي بل سبا به ورسره وګوري، له څلورو ورځو هلو ځلو، منډو ترړو، واسطو ماسطو، ترغیبونو او تهدیدونو وروسته چې څه په لاس ورنغلل تش لاس او خړې سترګې بیرته په شا وګرځېد!

د دې خبرې په اورېدو یقینا چې زما باور پر طالبانو ډېر ټینګ شو، ما دومره نه ګڼله چې طالبان به دومره ټینګ خلک وي، که څه هم چې دوی په لومړي سر کې چې کله امریکې یرغل وکړ ټولو ته معلوم شول چې له خپلو اصولو

په هېڅ دول تنازل نه کوي، که څه هم چې د سر په قيمت يې تمامېږي، خو دا چې په يو بل هېواد کې وي، او هغه هم په سياسي ډګر کې، په داسې حال کې چې امريکه کولی شي د ټولو نړيوالو قوانينو پر خلاف هر رنګه غير قانوني چلن ور سره وکړي، او دوی ته د ړکې هم وکړي چې که را سره ګوری را سره وګورئ او که نه را سره ګوری بيا د هر رنګه سخت چلن توقع ولرئ! مګر دوی له دې ټولو سره سره بيا هم ځواب ورکوي چې نه د ر سره ګورو! يقينا چې دا د سياست په ډګر کې يو تاريخي سرښندونکی بريد ګڼل کېږي! او زه باور لرم چې امريکايي سياست به په خپل تاريخ کې دا رنګه ماتې نه وي خوړلې! دا اول ځل و چې پر سياسي ماڼه يې سخت سرښندونکی ديپلوماتيک ګوزار وشو!

ځيني کسان وايي چې طالبانو بايد په قطر کې د بيرغ او لوحې په سر شخړه کړې وای، لاس يې اچولی وای، ډزې يې بايد کړې وای، يا يې ځان وژلی وای او يا يې نور وژلي وای!

دا خبرې کېدای شي هغه څوک وکوي چې نه يې د ديپلوماسۍ نوم اورېدلی وي او نه ديپلوماسي پېژني! د انساني تاريخ په ځانګړي ډول اسلامي تاريخ په اوږدو کې هېڅ داسې کومه بېلګه نشته چې د داسې کولو اجازه چا ته ورکړي، امام احمد رحمه الله په خپل مسند کې يو حديث راوړی: : (

عن عبد الله بن مسعود قال: جاء ابن النواحة وابن أثال رسولين لمسيلمة الكذاب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، فقال لهما: "أتشهدان أني رسول الله" فقالا: نشهد أن مسيلمة رسول الله. فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "آمنت بالله ورسله، ولو كنت قاتلا رسولا لقتلتكما".

قال عبد الله بن مسعود: فمضت السنة بأن الرسل لا تقتل. ) مسند الإمام أحمد, ج ۸, ص ۳۲۱, المستدرک للحاکم, السيرة النبوية لابن کثير، ج ۴، ص ۹۸.

له عبد الله بن مسعود رضی الله عنه روايت دی چې وايي: ابن النواحه او ابن ثال د مسليمة الکذاب لخوا رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د استازو په توګه راغلل، رسول الله صلی الله عليه وسلم ور ته وويل: آيا دا ګواهي ورکوئ چې زه د الله جل جلاله رسول يم؟ دوی وويل: مونږ ګواهي ورکوو چې مسيلمه د الله رسول دی! رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: ما په الله او پر رسولانو

يې ايمان راوړی، که ما استازی وژلای نو خامخا به مې تاسو وژلي وای! عبد الله بن مسعود وايي چې همدا قانون شو چې استازي به نه وژل کېږي )

څکه خوکله چې د حديبيې د سولې پر مهال حضرت عثمان رضی الله عنه قريشو ته ورغی او هغوی هلته ايسار کړ، او آوازه خپره شوه چې حضرت عثمان رضی الله عنه يې شهيد کړی رسول الله صلی الله عليه وسلم سمدستي ورسره ۱۴۰۰ صحابه کرام ټول جګړې ته تيار کړل، داسې عهد او بيعت يې ترې واخيست چې تر مرګه به جنګيږي! او ټولو همداسې بيعت ورسره وکړ!؛ څکه سفير او استازي ته ضرر رسول د ټولو آسماني او نړيوالو قوانينو خلاف عمل دی.

له پورتني حديث شريف نه معلوميږي چې د ديپلوماسۍ او جګړې ډګرونه، ژبې، چلن او اصولو توپير سره لري، د ديپلوماسۍ په ډګرکې جګړه، وهل او وژل نشته، او د جګړې په ډګرکې بيا پستې خبرې، او نرمښت نشته، يا په بله معنی، د سياست او ديپلوماسۍ په ډګرکې ژبې، نظرونه او دريځونه خبرې کوي، او د جګړې په ډګرکې بيا توري، غشي او نيزې خبرې کوي، هغه څه چې په ژبه او نظرکيږي هغه په توره او غشي نه شي کېدای، او هغه څه چې په توره او غشي کيږي هغه بيا په ژبه او نظر نه شي کېدای! توره او غشي څېړل کوي، خو ژبه او نظر بيا ګنډل کوي، له همدې کبله خودا دواړه لوري سره لازم او ملزوم دي، په داسې ډول چې يو يې پرته له بل نيمګړی دی، نظامي او سياسي اړخونه په حقيقت کې د شا او مخ حيثيت لري، له مخ پرته شا نه وي او له شا پرته مخ نه وي.

د انساني ټولنو تاريخونو ته که په غور وکتل شي، څرګندېږي چې د ښکېلو لوريو تر منځ د تعامل او چلن لپاره تل همدغه دوه لارې دي.

داخو ټولو ته معلومه ده چې مسيلمه الکذاب په درواغو د پيغمبرۍ دعوه کړې وه، خوکله يې چې استازي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په مخکې يې د مسيلمة الکذاب درواغژنه پيغمبري حقه وبلله، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم برحق رسالت يې رد کړ، رسول الله صلی الله عليه وسلم د ديپلوماسۍ د اصولو له مخې چلن ورسره

وکړ، نه يې ووهل او نه يې ووژل، او نه يې اسيران کړل، خوکه يې دا خبره د ديپلوماسۍ له چوکاټ بهر په کومه بله ځای کې کړې وای، کېدای شو بله رنګه چلن ورسره شوی وای.

او مسليمة الکذاب د رسول الله صلی الله عليه وسلم له استازي حبيب بن زيد رضی الله عنه سره د ټولو ديپلوماتيکو اصولو خلاف وحشي عمل وکړ، کله چې حبيب بن زيد رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم له لوري مسليمة الکذاب ته ليک ورووړ تر څو له باطل نه حق ته را وګرځي، مسليمة الکذاب خلک راغونډ کړل او حبيب بن زيد رضی الله عنه ته يې وويل چې ته دا ګواهي وايې چې محمد د الله رسول دی؟ ده ويل: هو، هغه د الله رسول دی، بيا يې ورته ويل: زه څوک يم؟ ده ورته ويل: زه نه اورم، بيا يې ورته وويل، آخر چې پوه شو چې زما پيغمبري نه مني په خورا وحشت سره شهيد کړ، د بدن غړي يې جلا جلا ترې غوڅ کړل، مګر حبيب رضی الله عنه تر آخره د مسليمة الکذاب د رواغزنه پيغمبري ونه منله، رسول الله صلی الله عليه وسلم چې له دې غمناکې پېښې نه خبر شو، سخت غوسه شو، همغه وو چې د مسليمة الکذاب د له منځه وړلو لپاره يې لوی لښکر برابر کړ، د لښکر له خوځېدو مخکې رسول الله صلی الله عليه وسلم له دې دنيا نه رحلت وکړ، خو هغه لښکر يې بيا ابوبکر صديق ولېږلو او د همغه لښکر په لاس مسليمة الکذاب مردار شو.

د يادولو ده چې لکه څه رنګه چې يو ديپلومات سياسي مصونيت لري، همدا رنګه دا ضروري ده چې دی به هم د ديپلوماسۍ اصول مراعاتوي، د ديپلوماسۍ د اصولو خلاف ورزي به نه کوي، اسلامي تاريخ او د سيرت او احاديثو کتابونه راوړي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د خپل وخت ګڼو پادشاهانو ته ليکونه لېږلي دي، په نوموړو ليکونو کې د پام وړ ټکی دا دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم نوموړو پادشاهانو ته درانه القاب کارولي دي، په سپکو القابو يې نه دي ياد کړي، د بېلګې په توګه رسول الله صلی الله عليه وسلم د روم، فارس، حبشې او قبطيانو مشرانو ته د خپلو ليکونو په سرکې داسې ليکلي دي: "من محمد رسول الله الی هرقل عظيم الروم" "من محمد بن عبد الله إلی کسری

عظيم الفرس"، "من محمد رسول الله إلى النجاشي ملك الحبشة"، "من محمد بن عبد الله إلى المقوقس عظيم القبط".

http://scotlandiard.arabblogs.com/archive/۲۰۱۰/۲/۱۰۱۲۲۳۷.html

بېرته د قطر د دفتر خبرې ته راځو، امريکا له طالبانو سره خپله کړې ژمنه ماته کړه، دا چې په حقيقت کې يو ګوزار و، خو خام او غير قانوني ګوزار، د ټولو انساني، قانوني او حقوقي اصولو خلاف ګوزار! او طالبانو چې بيا د دوی پلاوی له بار بار غوښتنو سره سره تش لاس ولېږلو دا پر امريکه يو ګوزار و، خو پوخ او قانوني ګوزار، له ټولو انساني، قانوني او حقوقي اصولو سره برابر ګوزار.



د امريکايي ګوزار د خاموالي او د طالبانو د ګوزار د پخوالي پايله دا شوه چې نن ورځ ټوله نړۍ امريکه له دومره غوره مېش، شان او شوکت سره سره ملامته بولي او طالبان سره له دې چې په ظاهري اسبابوکې په هېڅ توګه د امريکې په څېر نه دي ټول يې ستايي، تر پرونه پورې به ټولو طالبانو ته ګوته نيوله چې طالبان جګړه خوښي دي، سوله نه غواړي، آرامي نه غواړي، مګر نن دا دي ټول په يوه خوله وايي چې نه، په حقيقت کې امريکه او ملګري يې د سولې او آرامۍ دښمنان دي، او له همدې ځايه د دواړو لوريو سياسي بصيرت او د ډيپلوماسۍ اصولو ته ژمنتيا ښه څرګندېدای شي.

# قاهره کې پر مظلومو مسلمانانو باندې مثله قهر

حسن زوی

دفوځ له لورې پر محمدمرسي دکودتانه پس درامنځته شوې موقتې ادارې دسیکولر مشرانو په حکم په قاهره کې داگست د۱۴مې نېټې نه دفوځ ، پولیسو ، نیشنل گارد اودحسني مبارک دوخت د البلطجیه نومې ملېشو په لاس دمسلمانانوپیل شوی قتل عام لا هم دوام لري اود اگست تر ننۍ ۱۸ مې نېټې پکې دناپیېلو رسنیو په وینانېږدې ۴ زره مسلمانان شهیدان اوتر ۱۵زرو پورې ټپیان شویدي ، په ټپیانو کې داخوان المسلمین مهم مشر ډاکټر حسام ابوالنجاري هم شامل دی چې حالت یې داندېښنې وړښودل شویدی .

په قاهره کې داگست په ۱۴مه نېټه دمسلمان ولس په بې رحمانه قتل عام داثابته شوه چې رښتیاهم دمصر اوسنی رژیم ددې حقدار دی چې فرعوني رژیم وګڼل شي ؛ دابېله خبره ده چې دې دولت ته په فرعوني دولت ویلو که دهرفرعون روح خبر ېږي سخت به شرمنده وي .

هو! دچارشنبې په ورځ سهاروختي په ټانکونو کې سپروفوځیانو دمسلمانانو په اعتراضي کمپونوخونړی یرغل وکړاوله ځانونوسره راوستي بلډوزرونه یې پدې کمپونو وروخېجول ، دځمکني فوځ سره جنگي چورلکې هم ملې وې چې یې دحملې سره سم یې پر مسلمانانو لکه دبهرني خطرناک دښمن ډزې پیل اوتر آخره جاري وساتلې ؛ دحملې نه لاوړاندې دشپې له مخې په پټه په زرونو فوځیان او دحسن مبارک ددور البلطجیه نومې بدنامه ملېشه دښارتولو لوړو ودانیوو ته خېجول شوي ووچې همدوئ زیاتره مسلمانان په سرونو ، ځټونو اودبدن په نوروپورتنو برخو ویشتلي اوشهیدان کړیدي ؛ ددې خلکو گناه داوه چې دفوځ له لورې دلری شوي منتخب ولس مشر محمد مرسي بېرته واک ته دراوستلو غوښتنه یې کوله ، ددې لپاره یې دتېرو۴۴ ورځوراهیسې مظاهرې کولې اواعتراضي کمپونه یې جوړ کړي وو ؛ ډېر وحشتناک اوله حده زیات دردونکي منظرو ، په سکندریه ، پورټ سعید ، النصر اوځینو نوروښارونوکې هم فوځ په مسلمانانو خونړۍ حملې کړیدي چې پکې گڼ شمېر مسلمانان شهیدان شویدي خوپه قاهره کې ښخې ستره کربلا وه ؛ سرکونه ، لارې اوکوڅې له شهیدانو ډکې وې اوله هرلورې دټپیانو زګېروي پورته کېدل ؛ ازادو رسنیو کې راغلي چې دقاهرې دټولې لویدیځې برخې دځمکې نه دمړمنو ژړاگانې اوچغې پورته کېږي

اوفضا یې دبارودو تورو لوخړو نیولې ده؛ العربیه تلویزون وایي چې فوځ په العدویه میدان کې د ۱۰ زرونه زیاتې نصب شوې خیمې په منظمه توګه دفاسفورس بمونو او اورلګونکو ګولیو په واسطه سوځولې دي چې پکې تر ۵ زروپورې مسلمانان سوځېدلي دي سوځېدلو تنانو کې زیاتره ټپیان دي خو ګڼ شمېر پکې مړه شوي هم دي چې له بده مرغه په مړو شویو کې ۳ سوه پاکې مېرمنې اومعصوم کوچنیان دي .

د اګست په ۱۴ مې نېټې چې دحملې اوله ورځ وه دشهیدانوشمېر له ۳ زره او ۵ سوه نه اوښتی و او ټپیان ۱۰ زروته رسېدلي وو ، دړومبی ورځې پدې حملې کې دشهیدانو اوټپیانو شمېره ځکه ډېره لوړه شوه چې په کمپونو کې ناست ټول خلک بې وسلې وو خوبرعکس حمله پرې ډېره درنده وه ، دفوځ ، پولیسو او البلطجیه ملېشو سره یوځای ټولې امنیتي اداري هم په حملې کې شریکې وې ؛دکمپونو نه دوتلو ټولې لارې په ازغنو تارونوسختې بندی شوی وې اودهرې لارې په سر ګڼ شمېر فوځیان اوپولیس ولاړوو چې چاته یې دوتلو موکه نه ورکوله بلکې هر چا به چې دوتلو کوښښ کولو په ډېری بې دردی به یې په نښه کولو ؛ په شهیدانو کې داخوان المسلمین دمرشد عام دمرستیال ښاغلي خیرت الشاطر لور او زوم ډاکټر مصطفی حسن هم شامل دي .

ددرد مقام وچې دټپیانو دپورته کولو لپاره نه امبولانس و اونه هم دصحت عامې عمله .

هو ! داعتراضي کمپونو په ۲ ځایونو النهضه ډګر اود العدویه مسجدخوا شا میدان کې پر محصورو مېرمنو آفرین چې دګولیوو په روان باران کې یې له ځانونوسره په راوړوعادي وسایلو دټپیانو درملنه کوله ؛ اوچې کله معلومه شوه چې دټپیانو شمېر له اټکلونو ډېر زیات دی نود اخوان المسلمین مشرانو په عامومسلمانانو غږوکړچې دزخمیانو پورته کولو لپاره دې دخپلوموټروسره لاروکوڅوته راووځي ؛ظالم فوځ عام خلک هم دټپیانو پورته کولوته نه پرېښودل اودخلکوترمخه یې دهرشهیدپه پاک جسد تېل پاشل او اور یې وراچولو تردې چې درابعه العدویه دسترمسجددننه برخې ته یې هم اور واچولو اودقرآنکریم دزرونو نسخو سره یوځای یې پکې ټول شهیدان اوسخت ټپیان وسوځول اوچې وحشي زړونه یې پدې هم یخ نه شول نوترروغتونونو ولاړل شهیدان یې ترې راوویستل ویې سوځول اوبیایې چېرته نامعلوم لرې ځای ته ددې لپاره انتقال کړل دروغتونونه دمړو دویستلو اوپر نامعلوم لوري یې دانتقالولو لړۍ لاهم دوام لري داددې لپاره چې نړۍ ته دمړوشمېره کمه ښکاره کړي ځکه خو دولتي رادیو اوتلویزون وایي چې یواځې ۷۵۰ تنان دفوځ اوپولیسوسره دتېرو ۵ ورځو په اخ وډب کې وژل شویدي ؛دغاصبې اداري دې دروغو ته وګورئ ! له یوې خواشمېر دومره کم ښایې اوله بلې خوادې قتل عام ته داخ وډب نوم ورکوي ترڅوښه په سپین سترګی ستر ظلم هم وکړي اوځان بري هم کړي !؟

دروانوعملیاتو په جریان کې دنړۍ له سترګودترسره کېدونکوسترو وحشتونو دپټولو لپاره دمصر اداري دژورنالستانو په ورتللو هم بندیز لګولی دی؛ یواځې دالجزیره ، الوطن او الشروق تلویزونونونمایندګانوخپل ځانونه

دمرگ خولې ته ورکړيدي ، په مظاهره چيانو کې يې ځانونه پټ کړيدي او دهمدوئ لـه منځ نـه خپلـو تلويزونونوتـه معلومات ورکوي ؛ که بهر نړۍ دمصر دحالاتو نه څه لږه ډېره خبر ېږي نو دهمدوئ له لارې خبر ېږي ، خـودوئ وايـې چې دولت يې دنيولوپه هڅوکې دی اود فوځ اوپوليسوله لورې دومره زيات اوښکې بهيونکی غاز کـارول کېږي چې دمظاهره چيانوسره په يوې سيمې کې نور ددوئ اوعاموخلکولپاره اوسېدل گرانېږي خودسيمې نه وتل هم دځان نـه تېرېدنه ده ځکه چې دډگرنه يو وتونکی هم ژوندی نه پرېښوول کېږي اوفوځ يې خامخـا ولـي؛ دالعدويـه جومـات پـه ميدان کې محاصره شوی دالجزيره عکاس احمد ذکي وايې چې دميدان نه وتونکی هرفردويشتل کېږي ، احمد وايې : زماتر مخه ۱۰ يا ۲۰ نه بلکې په سونوهغه تنان فوځ اوپوليسو وويشتل چې درابعه العدويه ميدان نه يې دوتلـو هڅـه کوله ، هغه زياته کړه چې دلته هرڅوک ونيول شي بل ځای ته نه وړل کېږي بلکې همدلته يې سمدستي فوځ اوپوليس دخلکوتر مخه وژني هغه وايې چې داخوان المسلمين يومهم مشر ډاکټر حسام ابوالنجار هم زموږترمخه فوځ له نيولو وروسته وويشتلو چې اوس په روغتون کې دکوما حالت کې پروت دی .

په قاهرې اونورو ښارونوکې چې پدې دومره وحشت اوبې دردۍ دمسلمانانوقتل عام ته وکتل شي هيڅ سړی داتصور نه شي کولای چې دابه په يومسلمان هېوادکې ددولت له لورې په خپلو هېوادوالو ترسره شوی ظلم وي بلکې داسې ښکاري لکه دچنگېزيانوله لورې چې پدې هېواد ديوې سترې حملې پـه نتيجـه کـې داسـتر قتـل عـام رامنځتـه شوی وي ځکه خو جامعة الازهر په يوې خپرې کړې اعلامې کې ددې فوځي عملياتوغندنه کړيده او ويلی يې دي چې د ازهر اداري دداسې خونړو عملياتوتصور هم نه کولو .

دالازهر مشر استاذ اوپه نړيواله سطحه مشهور څېړونکي محمـد عمـار ويلـي دي چې دعبـوري دولـت اوسـني اقدام مصردپخواني ديکتاتور حسنی مبارک ددور نه هم ډېر تاريک دور ته يوړو .

دلته داخبره هم ډېره مهمه ده چې داسې نده چې گېنې داقتل عام له ارادې پرته ياله پروگرام خلاف رامنځتـه شويدي بلکې پروگرام اواراده له دې هم څوچنده زياته وه ؛ دحملې نه وړاندې دمصردولتي ورځپاڼې الاهرام ليکلـي ووچې دولتي لوړپوړوچارواکوپرېکړه کړيده چې دمحمدمرسي په پلوۍ کـې دراټولـو شـويوتنانو کمپونـه بـه ديـوې حملې په ترڅ کې له منځه وړي اودحملې په ړومبۍ ورځ به ۲۵ زره اخوانيان وژل کېږي .

دحملې نه وړاندې دنوموړې ورځپاڼې له لارې د دولت دې اخطـار داوښـووله چې دا قتـل عـام دپـلان لـه مخـې رامنځته شوی اوپلان ددومره سختې اوسترې حملې و چې بايد د۲۵ زرونه زيات تنان پکې وژل شوي وای خودا دالله تعالی فضل وچې خبره لسگونوزروته ونه رسېدله .

او داسې هم نده چې گېنې دمصر بې دينه حاکمان په خپلو اوسنو کړوپښېمانه دي بلکې ښـه پـرې خـوښ دي اوسره له دې چې کره يې ټوله نړۍ ستروحشت بـولي ددې اداري دبانـدنيوچارو وزارت لـه لـورې پـه خپـرې شـوې

اعلامې کې راغلي دي چې : دقاهرې په خنیځ کې درابعه العدویه جومات سره اوپه لویدیځ کې دنهضه څلورلارې کې داعتراضي کمپونوپر ضد امنیتي قواوې مناسب اقدامات کوي اودولت یې دکړونه راضي دی .

امریکا اونوره لویدیځه کفري نړۍ خوپه مصر کې هسې هم همدا حالت غوښتلو ، دهمدوئ دشوموپلانونو په نتیجه کې داهرڅه رامنځته شول ، همدوئ دې هروحشت ته فوځ هڅوي اوپه ملا یې ټپوي خوافسوس پدې دی چې پدې دومره حساسو شېبو کې اسلامي نړۍ ولې بې تفاوته پاتې شوه ؟ په یوې دولتي ورځپاڼې کې په ښه ډېرې سپین سترګۍ دمصر ددولت له لورې دخپل ولس دقتل عام اعلان رامخې ته کېږي خواسلامي نړۍ یې دمخنیوي لپاره هیڅ اقدام نه کوي اوبیا دا اعلان یواځې اعلان پاتې نه شو بلکې په ډېر وحشت سره عملي هم شو خو دترکې په شمول دڅو هېوادونوله لورې درسمي غندنې پرته بل هیڅ هم نه رامخې ته کېږي ؛ داڅومره دافسوس مقام دی چې په یواسلامي هېواد کې دننه دولس اودولت ترمنځ یوه کوچنۍ ستونزه ده خوټولې اسلامي نړۍ یې دحل لپاره هیڅ ونکړل .



دیـــادولو وړده چـې دحملـې نـه دوه ورځـــې وړانــــدې داوســــــنۍ ادارې دبانـدنیو چـارو وزیـر نبیـل فهمـي اخطـار ورکــړی ووچـــې ,, دمحمدمرسي پلویـان به داعتراضي کمپونـو نـــه ډېـــر ژر پورتـــه کړای شي ؛ که ددوئ سره مذاکرات بریالي نـه شـول نودقـانوني لارې بـه ددوئ نـه داکمپونـه خـالي کـړای شـي،، نـوملګري ملتونـه ، دبشـر دحقوقـو پـه نـوم فعـالې نړیـوالې ادارې ، امریکااونوره لویدیځه نړۍ داپوښتنه ولې نه مطرح کوي چې دنړۍ هغه کوم قانون دی چې په خپل هېواد کې دننه دې پردولتي ادارې داعتراض کولو په موخه په راټولوشویو هېوادوالو دحملې کولو اودزرونوترحده دوژلو اوټپي کولو اجازه ورکړي ؟ دنړۍ کوم قانون د۳ سوه کوچنیانو اومېرمنو دژوندي سوځولو اجازه ورکوي ؟ دنړۍ کـوم قانون وایې چې په روغتونونو اولاروکوڅوکې دې دبې ګناه وژل شویو انسانانو جسدونه وسوځول شي ؟

دلیبیاقبضه چې مطلوبه وه نوامریکا اودلویدیځ لوی شیطاني اتحاد ناټو خودقذافي ددولت په لاس دګوتو په شمېر دیوځوتنانو په وژل کېدو دقذافي پراداري یواځې انتقاد اوبندیز نه بلکې حمله کول هم اړین ګڼل خودلته چې ددوئ دلاسپوځې اداري په لاس په یوې ورځ کې اسلام خوښي لسګونه زره بې ګناه انسانان وژل کېږي نودمنافقت نه ډکودځو غولونکو توروپرته دوئ نور هیڅ کول اړین نه بولي .

محمدمرسي ته بېرته دواک سپارلولپاره چې دمصر غیرتمنو مسلمانانو کومه اوږده مبارزه وکړه اوپدې لارکې یې ځومره قربانۍ وړاندې کړې په انساني تاریخ کې به ځوک دکوم لومړي وزیر یا ولسمشر لپاره دوفادارۍ اوقربانۍ ورکولوداسې ساری وړاندی نکړای شي .

امریکا اونوره اسلام دښمنه لویدیځه نړۍ باید پدې ځانونه پوه کړي چې دمصر دمسلمانانو دابې ساري قرباني واک ته دیوشخص دراوستلولپاره نده بلکې دهغی رڼا دراوستلو لپاره ده دکومې دمړه کولولپاره چې اسلام دښمنو غربیانو اوپه اسلامي نړۍ کې ددوئ لاسپوځو واکمنو شپه او ورځ پرځانونو یوه کړیده اوداقربانۍ دهغه فکر داحیاء لپاره دي دکوم فکر لپاره چې دتاریخ په اوږدوکې دمصر اودنړۍ مسلمانانو سترې قربانۍ ورکړیدي ؛ تاریخ ګواه دی مسلمانو شازلموتل ددې نور اوفکر مبارکه شجره په خپلو وینوتر وتازه ساتلې ؛ انساني تاریخ پدې هم ګواه دی چې دهرې سترې قربانۍ نه پس داړنامړه شوی نده بلکې وړانګې یې په ډېری تېزۍ لاپسې خپرې شویدي .

زموږ لپاره دمصر اوسنی حالت ډېر دتشویش وړدی اوپدې ښه پوهېږو چې دفوځ په لاس داوسني قتل عام په رامنځته کولوداسلام اومسلمانانو دښمنان غواړي چې ډېرژر مصرهم دشام په برخلیک اخته کړي ؛ داوسنۍ سترې خونړۍ پېښې په رامنځته کولوبه دوئ خپل هدف ته په ورنېږدې کېدلو ځانونه کامیاب ګڼي خوموږ چې دنبوي مبارک عصرنه ترننه خپل تاریخ رامخې ته کړو نو راته دقربانۍ هره داسې پېښه په تور تاریک سمندر کې هغه روښانه جزیره ښکاري چې بالآخره ټول تاریک سمندر دخپلو وړانګو لاندې راولي ؛ موږیقین لروچې په اوسنۍ پېښه کې دمسلمانانو سترې قربانۍ په برکت به دنړۍ اوخصوصاً دمصر مسلمانان خپل دین ته ډېر نېږدې شي ، ددین لپاره دقربانۍ اوجهادي فکر به پکې نور هم قوي شي اوداسلام ددښمنانو اودهغوئ دلاسپوځوسره به یې په زړونوکې نفرت لاپسې قوي شي ؛ دقوت دسمندر داستر موجونه به نه یواځې داچې پر اسلامي نړۍ دلویدیځ له لورې مسلط شوي لاسپوځي لاهوکړي بلکې داسلام ددښمنانوترساحله به هم وروړسېږي چې بیابه یې ددوئ لپاره مخنیوی ډېرګران وي نوغوره داده چې دمصر واکمنان اودلویدیځ مشران دمصري ولس نه ښننه وغواړي اومحمد مرسي ته ژرترژره په واک سپارلومصري ولس اونړۍ ته دنورواحتمالي رسېدونکوتاوانونو مخه ونیسي .

# دخبرلیکنې ژورنالستیک آرونه:

## دخبراوغیرخبرترمنځ توپیر:

(شپږمه برخه) (شکورشفق)

### دخبر متن :

ځینې پوهان پدې نظردي، چې دخبر متن هرډول لیکل کیدای شي اودکوموا صولو او ضوابطوماتحت ندی، یعنې اډون او اوږدوالی یې یوډول نوې، خوددې سره سره یوځانګړی چوکاټ (اډانه )لري ،خبري توکي دخبرجوړیدلوپه مهال په ځانګړیوبڼو قالب کې اچول کیږي ،یوژورنالست (رابرت ایم نیل )وایې دیوې خبرلیکنې بڼه دیوه بادپه شکل آزاده وي ،خوبیا هم یوځانګړی چوکاټ لري اوداچوکاټ داسې لکه دحساب فورمول ،پخوابه یوه ژبه کې دخبر بڼه نوه، خو اوسمهال ورته یو ځانګړی چوکاټ جوړ شوی دی ،دبیلګې په ډول لومړی ورته دخبرعنوان یا سرخي ولیکل شي، بیا دخبر لیډ او ورپسې دخبردترلاسه کولو وخت ،ځای او ذریعه هم بیا ن شي.

(۱)دخبر دمتن دلیکلو پر وخت دې ته پام پکاردی ،چې دساده خبرونو تفصیل ښایې په دووپراګرافونوکې بیا ن شي، چې دتفصیل پروخت دموضوعاتو ارزښت هم په نظرکې ونیول شي، یعنې معلومات دارزښت له پلوه یو په بل پسې راوړل شي.

(۲)-په متن کې ښایې معلومات پیلامې ته په پام سره تشریح شي -(۳)په پیچلو ،اوږدواو دڅو برخو لرونکیوخبرونوکې له هر دوه، درې ،څلوروپراګرافونوروسته یوه

پیلامه راوړل شي –(۴) د پیښو تفصیل اوږد وي، نوځکه د پیښو په خبرونو کې اول لنډه پیلامه او وروسته د متن په برخه کې له پیل څخه تر پای پورې ټوله تېره کیسه په ترتیب سره ولیکل شي –(۵) د متن جملې بنا یې لنډې، څرګندې او اړوندې وي، چې ناڅرګندې جملې د کتونکیو د ستړیا لامل ګرځي....................

**دخبر متن په بیلابیلو لارو جوړیږي چې څو لارې یې دادي :**

الف -زماني یا مهالنی تر تیب:ددې نه موخه داده چې د پیښې داسې بیان وشي، چې د پیښیدو له پیله تر پایه پورې ټوله صحنه پکې انځورشي، دخبر متن کې د پیښې پیل او پای څرګند وي.

ب- تدریجي ترتیب:ددې څخه موخه دخبر دمتن داسې ترتیب دی چې مهمې خبرې په پیل او غیر مهمې په پای کې راشي اوداطریقه ترټولوغوره ده.

ج- مکاني ترتیب: بیانیه ډول خبرونوته معمولا مکاني ترتیب ورکول کیږي، ددې نه مطلب داوي چې پیښې دوخت پرځای دمکان اوځای له پلوه بیان شي، دبیلګې په ډول دکومې ننداري دخبر دبرابرولو په وخت کې په نندارتون کې دایښودل شویو شیانو، مصنوعاتو او سټالونو دیادونې تر څنګ مکاني ترتیب ته هم پام کیږي، کوم سټال چې لومړی راشي، دهغې یادونه لومړی اوکوم چې وروسته راشي دهغې یادونه وروسته کیږي.

ه -صعودي ترتیب:لدې څخه موخه دخبرمتن دډرامې یا افساني په بڼه لیکل دي یعنې کلایمیکس(Climax )په پای کې راځي، دغه ډول صنف ډیر لږبرابریږي یعنې دخبر نتیجه دخبر پای کې راځي.

ز – اجتماعي ترتیب :ددې نه غرض دترتیب دوه یا ددوه څخه دزیاتو لارو یوځای کول دي، ددغولارویوځای کولو لپاره کومه خاصه قاعده نشته اوددې لارې کارول دخبرپه ډول پورې تړلې دي.

دخبر شالید/پای(Endimy ):کله چې دخبر سرخط، لیډ اومتن جوړ شول، نوددې جوړ شوي خبرپای کې شالید راوړل کیږي، دخبر آخرې برخې ته شالید وایي، چې معمولا یو یا دوه پراګرافه وي اودخبر له موضوع سره په تړاولیکل کیږي اوهم دموضوع مخینه بیانوي چې دا دخبر بشپړونکې برخه ده اودخبر بشپړمعلومات لوستونکې او اوریدونکې ته وړاندې کوي.

**په رسنيو کې خبري توپيرونه :**

شک نشته چې چاپي ،راډيويي اوتلويزيوني خبرونه يو څه توپيرونه سره لري.

(۱)-راډيـــويي اوتلويزيـــوني خبرونـــه بايـــد ډيـــر روان اوســـاده وي اولـــه ســـختو لغاتو ،(ويونو )کارونونـه بايـد پکـې ډډه وشـي ،چـې بيـا ورځپـاڼو ،اوونيزواوخبرخپرونکيو مياشتنيو مجلولکه(مورچل )کې دسختو لغاتو کارونې شونتيا شته ،ځکه که چيرته اړتيا پيدا شي ،نو فرهنګ ياډيکشنرۍ ته پکې مراجعه کيداى شي او پدې خبر مکرر عبور هم کولاى شي ،خوداليکټرانيکي رسنيوخبرونه دهوا له څپو سره تر اوريدلو دمګړۍ تښتې او رايسارول يې شونې ندي اونه بيرته راګرځي، ترڅو پسې قاموسونه وګوري.

(۲)- راډيويي اوتلويزيوني خبرونه بايد ډير لنډوي ،چې کتـونکی اواوريدنکی پرې پـوه شي ،که چاپي خبرونه اوږده وي نو لوستونکی کولاى شي چې بيا بيا پرې راوګرځي.

(۳)- دورځپـاڼو او مجلـو اخسـتونکي ښـايې پـوه اولوسـتي خلـک وي ،مګـر پـه راډيـو اوتلويزيون کې بيا دا داضروري ندي..............

**دژورنالستيکي ليکنو لپاره مهمې نکتې :**

۱-تل ساده اورواني کلمې استعمالول.

۲-دامکان تر حده دجملو درالنډولو هڅه.

۳-غوره کلمې په وړتيا سره پلټل.

۴-خپلې هرې ليکنې ته رنګ ورکول.

۵-دبيان داسلوب اصول نه هيرول.

۶-غير علمي اوغيرمروجې کلمې هيڅکله نه کارول.

۷-له متروکه(مړو )عباراتو اونيمګړوجملو څخه ځان ساتل.

۸-دخبر ونودليکلوپر مهال ورسره خپل نظر نه ګډول.

---

**دخبر ځانګيزويش :**

(۱)-دويناوو خبرونــه: دغونډو، سيميناررونو، ورکشاپونو، مجلســونو، بحثونو، مناظرو اووعظونو څخه ډول ډول خبرونه جوړيږي چې دويناوو خبرونه ورته وايي.

(۲) جنايي خبرونه: دجنايي پيښنو، جنايي اغيزمنو، جنايت کوونکيو، تر اختطاف لاندې راغليو اړوند اختستونکې خبرونه په جنايي برخه کې راځي.

(۳) دپيښنو خبرونه: دالوتکو، بحري بيړيو، ريل ګاډو، موټرو، نړيدنې، سيلابونو، واورې ښويدندې، اورلګيدنې خبرونه دپيښنو په خبرونو کې راځي.

(۴) سياسي خبرونه: هرډول سياسي معاملې اوچارې دسياسي خبرونوپه چوکاټ کې راځي.

---

**خبري ژبوکې کوموخبروته پام پکار دی؟**

دخبر ليکلوپر مهال ښايي دژبې په برخه کې دغوخبروته پام وشي !

(۱) خبري ژبه کې ښايي زياتيګړې او اوبې ځايه کلمې نوې، ځکه دجملود اوږدوالې اودمفهوم دګونګ والي لامل ګرځي.

(۲) خبري جملې بايدلنډې اوځرګندې وې ځوپه يوه ساه ولوستل شي.

(۳)-ښايي له تخنيکي کلموډډه وشي اوکه دا ړتياله مخې وي بايد روښانه وي.

(۴) پـه خبري ژبه کې دمترادفاتولـه کارولوڅخه ډډه پکارده، ځکه دبې ځايه اوږدوالي سبب ګرځي.

(۵)-خبري ژبه کې تکرارهم ښه ندی.

(۶)-لنډيز، بلاغت، ځرګندتيا اوروانې دخبري ليکنې ښيګڼې دي.

(۷) په خبري ليکنه کې ښايي ځاني انګيرنې نوې.

(۸)-دخبري ليکنې جملې ښايي لنډې او يوتر بله اړوندې وي.

(۹)-دليکنې هره کلمه بايد دواقعيت استازولې وکړي، لاپې شاپې، بې ځايه ستاينې، اوغندنې پکې نوې.

(۱۰)-پاراګرافونه يا فقرې يې بايدخپلمنځې منطقي تړاو ولري.

(۱۱)-عامې اوزياتيګړې کلمې بايد پکې ونه کارول شي.

---

**تعقيبي خبر**(Follow- UPS-amdp –ewrites):

کله چې عموما خبريالان دکومې جهادي يا جنګي پيښې خبر ورکوي اود پيښې ټول جزئيات يې نوې ترلاسه کړي ،ياداچې دکومې چاودنې ،اورلګيدنې ،اوربښت اوسيلاب خبروي چې زيانونه يې خورامخ په ډيريدو وي ،نوپه لومړي خبر پسې دهمدغې موضوع (سکالو )نورو خپريدونکيو خبرونه ته تعقيبي خبرونه يا (فالوب)ويل کيږې.

لکه تېرکال دجلال آبادبانک يادکابل ديپلوماتيکې سيموباندې دمجاهدينوفدايي حمله، چې تر ډيرو ورځوپورې يې خبرونه په تعقيبي ډول خپريدل ،يادسيلابونوتسلسل چې په ورځوورځويې دزيان کچه مخ په ډيريدو وي.

دتعقيبي خبر ليکلاره:

په تعقيبي خبرکې ډيروخت نوې خبره څرګنديږي، چې له پايلو يې خلک خبروي ،په تعقيبي خبرکې تحقيقات ،پايلې اونويو پيښوپه اړه تازه حال بيانيږي ،دغه راز پدې خبرکې ،دهغو نيمګړتياوو اصلاح کولوته پاملرنه کيږي چې له دقت پرته دسرعت له مخې نا سم خپاره شوي وي.

---

**مرکـــــه** :(Interview):

پـه مرکې ولاړخبرهم لـه تخنيکي پلـوه دوينـا او وعـظ دخبرونوپـه څېـر وي ، پـدې ډول خبرونوکې يوګډ توکی شته ،چې مرکه کوونکی اووينااوال پـه روانوحالاتواودعامـه دلچسـپۍ په مسائلودنظرڅرګندونه کوي ،ترډيره بريده ددغه خبرونوترتيب ،ليډاوعنوانونه يوډول وي.

پرمرکې دولاړوخبرونه ليډونه /پيليزې:

(۱)-دمرکې په سرکې بايد دمرکه کوونکې نوم راشي ،لکه(داسلامي امارت وياندذبيح الله مجاهد..........زمونږخبريال ته پخپله يوه ځانګړې مرکه کې داسې وويل چې ...........................

(۲ )-دمرکـه کـوونکې مهمـه خبـره بايد دمسـتقيم نقـل قـول پـه بڼـه واخسـتل شـي لکـه ((دافغانستان اسلامي امارت دټولې نړۍ دوګړوآزادۍ ته درناوی لري ) )دغـه خبـره داسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهدنړیوالې تلویزیوني شبکي .......................سره پـه خپلـه مرکـه کې وکړه ....................................... )

(۳ )دمرکـه کـوونکې نـوې خبـرې بايـد بالواسطه يـا غيـر مسـتقيم راوړل شـي ،لکـه (( داسـلامي امـارت ددعـوت وارشاد دکمیسـون مشـر وويـل: اوس ددې وخـت رارسـيدلی چې ځوانان په يوه اتفاق ديرغلګروپرخلاف دجهاد ډګرتـه لاړشي او داسلام او خـاورې غليمـان لـه هيواده وشړي ) )

(۴ )-دمرکې په پيل کې بايد دمرکې موضوع روښانه شي لکه:داسلامي امارت دفرهنګي چـــارو دکميســــون مشـــرتابه دبيـــان دآزادۍ پـــه پـــارخپلو خرګنـــدولوکې وويـــل ........................................ ) )

متن يې بايد دهغوخبرونوپـه څېـروې، لکـه څنګـه چې دويناووخبرونـه وو ،اوهغـو خبروتـه پاملرنه پکار ده ،کوموته چې (خبرونو )کې کيده ،که مرکه کوونکی مهم شخصيت وي، مرکـه يې بايد دسوال اوځواب په بڼه خپره شي اوکه ډېرمهم نـوي نوبايد دمرکې څخه دخبر مـتن جوړ شي.

---

**ماخذونـه**: فن ادارات اردو (ډاکتـر مسـکين علی حجـازي )۲-اسـلام اوژور نـاليزم (سيد عبيدالاسلام زيني ) ژباړن عوض الدين صديقي. ۳-دژورنـاليزم مطالعـه- ليکـوال (ايـس ايم شاهد ).۴ -خبر اوخبريالي -(ليکوال عبدالمعيد هاشمي ). ۵- دخبر ليکنـې آرونـه -(ليکـوال اکبرنصراللهي )ژباړه محمد آصف شينواری.۶- مرکـه -ليکـوال (احمـد تـوکلي ). ۷-دخبريـالۍ آرونـه –ليکـوال (حجـت الله عباسي )ميا خيـل ژبـاړه. ۸-خبـر-ليکـوال (ډاکتـر يـونس شـکرخواه )ژبـاړه شـينواری. ۹ -عملـي ژورنـاليزم -ليکـوال (سـيد هـارون نجفـي )ميـاخيـل ژبـاړه. ۱۰- خبـر پيژندنه –داميرجان وحيد احمد زي ژباړه ۱۱- کالم ،فيچر او تبصره -محمد اسلم ډوګر

ذبیح الله (مجاهد)

# څو شیبې له خپل ولس سره

ـ پوښتنه : موږ لوستو نکي د امارت په سایټ کي د امارت پـه تشـکیل کي د بیلا بیلـو کمیسیو نو ، نو مو نه ګورو چي الاماره سایټ یې د مسؤلینو سره مر کې کړي وی یا یې اړ وند خبرونه نشر سوي وي که د اسلامي امارت د تشکیلاتو په اړه را ته معلو مات را کړئ او همدا را ته رو ښانه کړئ چي د غـه کمیسـیو نـو نـه لا ئحې اوطرزالعملونـه لـري کـه څنګـه ؟ حاجي محمد

ځواب: مننه خورا ښه پوښتنه مو مطرح کړه ، هو د اسلامی امـارت تشـکلات د یـوه جوړ او با کفایته نظام نمایندګي کوي ، په دې اړه لږ څه تفصیل تـه اړتیـا ده چې پـه لانـدي توګه تاسو ته وړاندې کیږي:

د اسلامی امارت زعامت خو ټولو ته معلوم دی چې عالیقدر امیرالمؤمنین چې د هیواد د ۱۵۰۰ یونیم زرو جیدو علماء کرامو لخوا د افغانستان لپاره زعیم او امیر ټاکل شـوی پـه رأس د نظام کې وجود لري او په دې سختو امنیتي شرائطو کې یې په پوره میړانه ، تدبیر او درایت سره مجاهدین په یوه صف کې ساتلي او د خپل هر اړخیز نظام د چوکاټ او طراحي په برکت یې د هرډول خپل سریو ، ځان ځانیو او تفرقو مخه نیولي او په دې اړه یې د دښمن ټولې شومې هڅې له ناکامۍ سره مخ کړي دي او په ټول هیواد کې یې د جهاد پراخ صف پـه یوه نظم اونسق کې ساتلی او د ادومره لوي صف یې لکه پـه یـوه کـور کې د ژوند کونکو پـه څیر یوله بله سره همکار کړي او یوبل ته یې ورپیژندلي دي ، د اختلافاتو مخه یې نیولی او

ټول مجاهد افغانان يي په ځان را ټول کړي دي چې واقعا دا يو کرامت ده او يوه خورا مدبره رهبري ده.

دامنيتي ملحوظاتو په وجه د اسلامی امارت د زعيم نه راکښته دهغه دنائب مقام دی چې په روزمره شکل دمجاهدينو ټول کميسيونونه اداره کوي ، جهادي بهير خاري او دپريکړو اوتصاميمو لپاره له اميرالمؤمنين نه احکام اخلي او د اجراتو له کولو وروسته دخپل کار ټول جريان اميرالمؤمنين ته په تفصيلي شکل رسوي ، دنائب د مقام نه را کښته لاندي کميسيونونه په خپلو خپلو برخوکې جهادي امور په مخ وړي او خپل کاري ګزارشات دنائب مقام ته رسوي د هغه په واسطه له اميرالمؤمنين نه احکام اخلي او تصاميم نيسي.

همدا رنګه دا سلامی امارت رهبري شورا ده چې په مستقل ډول فعاليت کوي او خپل ورځني کار پرمخ وړي ، او دټولو تفصيل په لاندي ډول ده:

۱- رهبري شورا

۲- محکمه

۳- نظامي کميسيون

۴- اقتصادي کميسيون

۵- سياسي کميسيون

۶- فرهنګي کميسيون

۷- دارشاد اوعوت جلب او جزب کميسيون

۸- دتعليم او تربي کميسيون

۹- دمؤسساتو کميسيون

۱۰- دصحت کميسيون

۱۱- دبنديانو کميسيون

**تفصيل :**

**- رهبري شورى :**

رهبري شورا د اسلامي امارت لوړپوړې مشورتي ارګان ده چې د اړتيا په صورت کې د امارت مقام ته مشوروى ورکوي ، او لوي هيوادني مسائل ، سياسي وضعيت ، نظامي وضعيت ، اقتصادي وضيعت او په ټوله کې د هيواد او اسلام په اړه لوړ مسائل تر بحث لاندي نيسي او د امارت مقام ته لازمې مشورې ورکوي.

**- محکمه :**

د محکمې مقام خورا باصلاحيته مقام ده چې کاملا آزاد او خپلواک ده ، له اميره رانيولي تر کوچني مجاهده او بيا له عامو هيوادوالو را نيولي تر هغو افغانانو چې د دښمن په صف کې هم ولاړدي په وړاندې يې په بې پرې شکل قضاوت کوي او د ټولو ولاياتو او ولسواليو په سطحه د دري ګونو محاکمو لپاره خپل تشکيلات لري او په ډيره کمه موده کې د شريعت مطابق پريکړې کوي او د خلکو ترمنځ منازعات بې له کوم تکليف او وخت نيولو نه حل او فصل کوي ، محاکم دري پړاوه لري ابتدأيه محکمه ، مرافعه او تميز چې ټول يې په ښه ډول فعاليت کوي او د هيواد جيد علماء کرام يې په رأس کې قرار لري.

**- نظامي کميسيون :**

نظامي کميسيون په هيواد کې د ټولو ولاياتو دواليانو او مجاهدينو د فعاليتونو ، کاري جريان تعقيبوي ، د هغو د اکمالاتو او ضرورتونو ته رسيدګي کوي ،

واليان بيا ولسوالان پيشنهاد کوي او د هغو د کار جريان څاري ، ولسوالان بيا د ټولو جهادي ګروپونو او دلګيو په رأس کې قرار لري چې په سيمه کې جهاد کوي ، د هغو اکملات ، د هغو تاکتيکونه او د هغو ټول کاري جريان څاري بيا واليانو ته راپور ورکوي واليان راپور بيرته نظامي کميسيون ته محول کوي او نظامي کميسيون يې نائب او هغه يې اميرالمؤمنين ته وړاندې کوي او په مراتبو يو بل ته مسئوليت هم لري.

د نظامي کميسيون په چوکاټ کې د ملکي تلفاتو د مخنيوي اداره هم فعاليت لري چې په ټول هيواد کې مجاهدينو ته د ملکي خلکو د پيژندنې په اړه معلومات ورکوي ، د ملکي تلفاتو د پيښيدو په صورت کې قضيه څاري او په اړه يې لازم تصميم نيسي که څوک

دمجازات او محاکمې ور ووهغه محکمې ته معرفي کوي او دملکي تلفاتو له مواردو سره له نیږدې تماس نیسي دهغو سره غم شریکي کوي ، تسلي ورکوي او د لزوم په صورت کې ورسره مرسته کوي.

په ټولیزه توګه نظامي کمیسیون ځانګړې لائحه او کاري طرزالعمل لري چې دهغې په دننه کې خپل اجرأت کوي او دولایاتو لپاره یې په ولایتي سطحه او بیا دولسوالیو لپاره یې دولسوالۍ په سطحه ځانګړې نور کمیسیونونه توظیف کړي ، دولایاتو دکمیسیونونو او دولسوالیو دکمیسیونو لپاره یې هم غړي او اعضا ټاکلي او ځانګړي کاري طرزالعمل لري ، نظامي کمیسیون په خپل چوکاټ کې دننه دفدایي مجاهدینو ځانګړې محاذونه لري چې دهغو کنټرول او څارنه اودهغو لپاره داهدافو ټاکل هم دنظامي کمیسیون دنده ده.

## ـ اقتصادي کمیسیون :

اقتصادي کمیسیون داسلامی امارت تر ټولو لوړه او یوازنۍ مالي سرچینه ده ، اقتصادي کمیسیون دخپل کار لپاره ځانګړې لائحه لري او خپل فوق العاده فعال کاري پرسونل لري چې دهیواد او له هیواده بهر دمسلمانانو مرستې او کومکونه را جلبوي او دامارت دمشرتابه له حکم سره سم یې مصرفوي ، دمصرف جریان یې څاري او په اړه یې راپور تهیه کوي او دنائب مقام ته یې وړاندي کوي ، داقتصادي کمیسیون دنظم او نسق له برکته داسلامی امارت په ټول مالي سیستم کې هیڅ ډول درغلي کول امکان نلري او دیوې افغانۍ په مصرف هم دامارت مشرتابه ته احوال ورکول کیږي او دیوې افغاني په ترلاسه کولو هم مشرتابه خبریږي.

## ـ سیاسي کمیسیون :

داسلامي امارت سیاسي کمیسیون دسیاسي مسائلو په اړه مسئولیت لري او د مشرتابه له احکامو سره سم به خپل سیاسي فعالیت پرمخ وړي ، سیاسي کمیسیون داسلامی امارت دسیاسي فعال جهت په توګه پیژندل کیږي ، هرډول سیاسي تصامیم نیسي ، دسیاسي فعالیت په اړه مشرتابه ته راپور ورکوي ، دسیاسي پرمختګ او هلوځلو په اړه لازم احکام اخلي او دتطبیق لپاره یې ټولې سیاسي او لازمې لارې چارې سنجوي ، دامارت له مشرتابه نه داحکامو داخیستلو وروسته خپل اجرأت کوي او خپل کاري رپوټ دامارت مشرتابه ته وړاندې کوي.

**ـ فرهنګي کميسيون :**

د اسلامی امارت فرهنګي کميسيون په فرهنګي ، مطبوعاتي او خبري برخه کې د اسلامی امارت نماینده ګي کوي ، دغه کميسيون په خپل کاري چوکاټ کې آنلائن ، چاپي ، ژوندی ، تصويري ، او صوتي خپروني لري ، دانترنيټ په مټ د اسلامی امارت ۷ويب پاڼې چلوي ، د اسلامی امارت څلور مجلې چاپوي ، د دريو سټوديوګانو ، الاماره ، منبع الجهاد او الجرة سټوډيوګانو دلارې جهادي او اسلامی فلمونه په پنځو ژبو کې خپروي ، دهيوادوالولپاره جهادي او حماسي تراني او نعتونه وړاندي کوي ، د شعر او ادب په برخه کې ځينې نور فعاليتونه هم لري چې خورا مؤثراو مثمر دي ، همداراز د اسلامی امارت دويندويانو تمويل او پالنه هم دهمدې کميسيون دکار مهمه برخه ده .

له دې نه علاوه د اسلامی امارت رسمي اعلامي ، تبصرې ، څرګندونې او بيانونه خپروي ، لازم توکي ، کتابونه ، لائحې او جنتری چاپ او توزيع کوي ، په ټوله کې په مطبوعاتي ډګرکې د اسلامی امارت خورا مؤثر او با جرئته استازيتوب کوي.

**ــ د دعوت ارشاد جلب او جذب کميسيون :**

د ارشاد او دعوت جلب او جذب کميسيون لکه چې مخکې يې يادونه وشوه په هيوادکې د روان جهادي بهيرترڅنګ دعوتي پروسه پرمخ وړي ،دعام ولس داذهانو د تنوير،دمجاهدينو د ديني او اخلاقي روزنې او دمقابل جانب دهغو اشخاصو دنجات اودعوت لپاره جوړه شوي چې غواړي له خپلو کړنو لاس په سر شي ، د اسلام او هيواد ګټو ته ژمن شي او د اشغالګرو له ملاتړ او همکارۍ نه لاس واخلي ، دغه کميسيون ځانګړي دعوتي لائحه لري اوتراوسه پورې يې خورا لوی پرمختګونه درلودلي دي چې دهيواد په لر او برکې د ډيرو افغانانو دنجات او ښيرازۍ سبب شوي او لاهم خپلو فعاليتونو ته په پوره اخلاص متوجه دي ، الله تعالی دې لوي اجرونه اوعوضونه ورته نصيب کړي او الله تعالی دې لا هم په کارونو کې برکت او خير واچوي.

**ـ دتعليم او تربيي کميسيون :**

د اسلامی امارت په تشکيلاتو کې دتعليم او تربيي (معارف ) کميسيون هغه ارګان ده چې خورا لويه تمع تري کيدای شي ، دغه کميسيون ته د اسلامی امارت دمشرتابه خاصه توجه شته ، دتعليم او تربيي کميسيون دخپلو فعاليتونو لپاره خورا جامع او هر اړخيزه

لائحه او طرزالعمل لري ، ددغه کميسيون مشرتابه او جوړښت له پوه ، مدبرو او باعلمه اشخاصو څخه ترکيب شوي ، دتعليم په اهميت ډيرښه پوهيږي ، دتعليم نظارت او مراقبت لپاره ډيره ښه تګ لاره لري ، په لري پرتو سيموکې د ديني او عصري تعليم دعامولو لپاره دجهادي مشکلاتو سره سره ډير متوجه دي ، داسلامی امارت ترکنټرول لاندي په ټولوښونځيو اومدارسو کې تدريسي پروسه ټوله دهمدې کميسيون دمخامخ څار اومراقبت لاندي ده ، دخپل وس مطابق يي ښونځيو اومدارسو ته د لا ښه والي او بهبود لپاره مرستې او همکارۍ هم کړي او هم يې دنصاب ، تعليمي پروسيجر ، دخلکو تشويق او ترغيب لپاره ډيرې ښې برنامې ترلاس لاندې نيولې دي.

**ـ دمؤسساتو کميسيون :**

دمؤسساتو کميسيون داسلامی امارت په تشکيلاتو کې په ټول هيوادکې دمؤسساتو او خيريه ټولنو دڅار اومراقبت دنده په غاړه لري ، دغه کميسيون هغو ټولو مؤسساتو ته چې دکابل اداري اړوند نه وي او له استخباراتي شايبو نه هم پاکې وي دهيواد په ګوټ ګوټ کې دکار زمينه مساعده وي ، مرسته ورسره کوي اود مؤسساتو دکارمندانو دامنيت په برخه کې لازم تصاميم نيسي ، دمؤسساتوکميسيون په ټول هيوادکې دتليفوني شبکو دڅار او کنټرول وظيفه هم لري ، په هيوادکې دهغو قراردادونو او پريکړو دقيقه څيړنه کوي چې په مختليفوبرخو کې دځينو هيوادونو لخوا له افغانستان سره شوي ، دمؤسساتوکميسيون په ټول هيوادکې دهرولايت لپاره ځانګړي نماينده ګان لري او فعاليت يې دهيواد هرګوټ ته رسيدلی ده ، يادکميسيون دهغو مؤسساتو کارونه او دکارنو کيفيت په خورا جديت سره برسي کوي چې غواړي عمراني کارونه وکړي او دخلکو لپاره دښونځيو ،مدرسو ، کوهيانو ، سړکونو ، ويالو ، استنادي ديوالونو ، بندونواو زراعتي برخو کې خدمات وړاندي کړي ، په يادو ټولو برخو کې دمؤسساتو کارونه ستايل کيږی او دکار کيفيت او څرنګوالی يي دبې پريتوب سره سره په نظر کې نيول کيږي ، او په هره برخه کې لازمه مرسته ورسره کيږي ، دغه کميسيون هم دخپل کار دبهبود لپاره ځانګړی طرزالعمل او لائحه لري چې په مټ يې کارونه په منظم شکل پرمخ ځي.

**ـ دصحت کميسيون :**

دصحت کمیسیون داسلامی امارت په تشکیلاتو کې یومهم کمیسیون ده چې داسلامی امارت د ټپیانو درملنه کوي ، دټپیانو دانتقال لپاره کاري ټیم لري ، دجهادسنګرونوته د دوا او درملو په رسولوکې هڅې او هلې ځلې کوي ، دمجاهدینو معالجه په داسې سختوشرائطو کې پرمخ وړي چې په هره لویه لار کې دټپي دانتقال لپاره خورا ستونزې موجودي دي ، دغه کمیسیون دپوه او لائقو ډاکټرانو په مټ توانیدلي چې دروان جهاد ټول ټپیان چې د هر ولایت پورې اړه ولري معالجه کړي ، چې لله الحمد په سلو کې ۹۷ فیصده ټپیان یې بیرته معالجه کړي او بیا یې دجهاد سنګرونوته په روغه سټه استولي دي ، یاد کمیسیون هم خپل کاري طرز العمل او لائحه لري ، او له خورا قوي کاري پرسونل نه هم برخمن ده. جزاهم الله خیرا

**ـ دبندیانو کمیسیون** :

داسلامی امارت دبندیانو کمیسیون دهغومجاهدو بندیانو لپاره جوړ شوي چې دهیواد دننه او یاله هیواده بهر په زندانوکې پراته دي ، دبندیانو کمیسیون دخپل کار اوفعالیت لپاره طرزالعمل او لائحه لري چې په مټ یې ټول کمیسیون اداره کیږي او دهیواد دننه په ټولو زندانونوکې چې دکابل اداري او خارجیانو پورې اړوند دي له مظلومو بندیانوسره ارتباطات لري ، دغه کمیسیون دخپلو ولایتي نمایندګانو په مټ دهر ولایت له هغو زندانیانو نه حال احوال اخلي چې دمجاهد په نامه نیول شوي او ځورول کیږي ، دهغو له کورني سره دبندي اړیکې ټینګوي، دبندي دخلاصون لپاره لارې چارې سنجوي ، دبندیانو سره دظلم او تیرې په صورت کې دهغو غږ تر نړیوالو رسوي ، دبندیانو دحقوقو دتأمین لپاره له ځینو خیریه او نړیوالو ټولنو سره مخامخ تماس لري چې په دې ډول یادکمیسیون توانیدلی چې دهیواد دننه او بهر دخپلو ټولو بندیانو شمیر معلوم کړي ، دژوند دځرنګوالي په اړه یې معلومات وکړي ، دخلاصون په اړه یې له مناسبو وسائلونه استفاده وکړي او دبندیانو له کورنیو سره لازمه مرسته وکړي. الله تعالي دي په کارونو کې برکت واچوي او خداي تعالي دې زموږ ټول بندیان ددښمن له ظلم نه خلاص کړي .

# شهيدې قافلې

هڅاند

## اتل شهيدمولوي سميع الله فاروقي

شهيد سميع الله فاروقي د سيد قيم زوی د ملک شهزاده لمسی د طور اباز کړوسی د صافی قوم محمد نورخيل چې په کال ۱۳۶۲ه ش کې د سالاب عليشنګ ولسوالۍ لغمان ولايت دګچيانو د کلي په يوه ديندار ه کورنۍ کې زيږيدلی دی، شهيد سميع الله خپلې ابتدايي زده کړې د پاکستان د کوهاټ په مرکزي عيدګاه مدرسه کې پيل بيا په کال ۱۳۷۷ه ش کې افغانستان ته ستون او په ننګرهار اسلامي دارالعلوم کې داخل شو، بالاخره فاروقي شهيد په کال ۱۳۸۴هـ ش د پاکستان د خيبرپښتونخوا په مشهوره جامعه دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک کې شامل او ديوه ممتاز عالم په توګه ورته د ستار فضيلت پرسر شو، نوموړي له فراغت وروسته په کال ۱۳۸۵ه ش کې د باړي پر قمبرخيلو کي مدرس شو ،خو خپل لوړ شجاعت او ايمانداری دا اجازه ورنکړه چې يوازې تدريس بسنه وکړي ، په کال ۱۳۹۱ه ش کې د اسلامي امارت د مسؤلينو لخوا د ولايتي کميسيون غړی وټاکل شو او د يو ګروپ مسؤليت هم وروسپارل شو، دهمدې کال د پنځمي مياشتي په پنځم تاريخ چې د رمضان المبارک ۷ تاريخ سره سمون خوري د جمعې په شپه د عليشنګ ولسوالۍ سالاب عليا الهي غونډۍ په مربوطاتو کې د جند الله مجاهد په شمول د اربکيانو لخوا د شهادت لوړ مقام ته ورسيد.

انا لله وانااليه راجعون

قيافه: نوموړی د لوړې ونې غنم ډوله رنګ او د ښو اخلاقو خاوند و،چې په خپلو ملګروکې خورا په نيکو اخلاقو د پوره شهرت خاوند و.

پاتې ورثه: دوه لورګاني او دمحمد عثمان په نوم يو ځوی

## شهید حافظ مولوي عبدالرحیم

شهید حافظ مولوي عبد الرحیم دمستقیم ځوی د بلوچ لمسی د لغمان ولایت دعلیشنګ ولسوالۍ د سالاب سفلی د سرورخیلو کلي په یوه دینداره کورنۍ کې پیدا شوی دی .

ابتدایي تعلیم یې په خپل کلي کې تر لاسه اوبیا دنوروزده کړولپاره پاکستان کوهاټ ته لاړ او هلته دالهجرت والجهاد په مدرسه کې شامل شو ،وروسته یې موقوف علیه اودوره حدیث د پیښورپه دارالعلوم شاه فیصل صدرکې د شیخ الحدیث شهید مولینا حسن جان سره ولوسته.

نوموړي له فراغت وروسته تدریسي چاري ترسره کولې، چې بالاخره خپل اشغال شوي هیوادته ستون او هلته یې د خپل دیني او علمي خدمت سره بیره جهادي لاره خپله کړه، چې په همدې دوران کې ۱۳۹۱زکال درمضان مبارک میاشت وه ،چې دبې رحمه اجیرو اربکیانولخوا دلغمان د سالاب دبرکلې په ساحه کې په یوه کمین کې په شهادت ورسید

انالله وانا الیه راجعون

## شهیدمولوي برات ګل حامد

محترم مولوي برات ګل حامد دانارګل ځوی دعبدالرحمان لمسی د صافي قوم اخندازاده خیلوسره تړاولري ، دلغمان ولایت دعلیشنګ ولسوالۍ سالاب علیاپه ګچیانو کلي کې په کال ۱۳۶۰ش ه کې زیږیدلی دی ،لومړنۍ زده کړي یې په خپله پلرنۍ سیمه کې ترسره کړي ،وروسته په کال ۱۳۷۱ه ش کې درالهجرت پاکستان ته مهاجرشوی او هلته یې دکوهاټ په مرکزي عیدګاه مدرسه کې خپل درسونه پیل کړل ،موقوف علیه دوره یې په چارسده اتمانزومدرسه او ددوره حدیث یې فضیلت یې په کال ۱۳۸۲کې دمشهورعلمي مرکزجامعه درالعلوم حقانیه اکوړه خټک څخه ترلاسه کړی .

نوموړی د اسلامي امارت له لیکوسره له پیله یوځای شوی او لومړی یې د بدنامې شمالي ټلوالې د شروفساد په مقابل کې جهادي مسیر خپل او بیا یې د امریکایانو د اشغال پر خلاف وسله پورته کړې او ترپایه ورسره وجنګید.

چې بالاخره په کال ۱۳۹۱ش ه دعرفي په دریمه دګوډاګیانو لخوا اسیر او بیا په بې رحمانه توګه په شهادت ورسید انا لله وانا الیه راجعون.

نوموړې یو زړوراو قهرمان ځوان وو، چې د ښو اخلاقو په وجه په ملګروکې د ښه شهرت خاوند و، درمیانه ونه او غنم رنګه څېره یې درلوده.

له نوموړي څخه وروسته دوه لورګانې او دعفران الله په نوم یو ځوی پاتې دي.

## شهید عطاءالله شاکر

شهید قوماندان عطاءالله شاکر د ملا نعمت الله ځوی د ملا حبیب الله لمسی دلغمان ولایت دعلیشنګ ولسوالۍ د سالاب سفلی په په سرورخیلو کې په **۱۳۵۹**ه ش کال کې په یوه دیندار ه کورنۍ کې زیږیدلی، لومړنۍ زده کړه یې په خپل کلي ترسره او بیا دارالهجرت پاکستان ته تر هجرت وروسته یې تر دریمې درجې پورې کتابونه ولوستل، له بده مرغه چې له ذهني ناروغۍ وروسته یې نور تعلمي پرمختګ ونکړای شو او خپل هیواد ته ستون شو.

دصلیبي اشغالګروپه خلاف یې جهاد پیل او دخپلو اتلوالیوله امله دعلیشنګ د سالاب مسؤل و ټاکل شو، نوموړی هغه لومړنی شخص و، چې په سالاب کې پر امریکایي وحشیانو لومړنی برید وکړاو څوکسه یې پکې له منځه یوړل. چې بالاخره ښاغلی شاکر د ملاحضرت محمد او نوروملګروپه شمول دعلیشنګ درې په سالاب کردي کې په **۱۳۹۱**ه ش کال یوه هوایي برید کې په شهادت ورسید. انا لله وانا الیه راجعون

نوموړی چې د منځني قد او غنم ډوله رنګ درلودونکی و، خورا ډیر زړوراو دښو اخلاقو خاوندو، چې خپلو جهادي تجربواوکاري زیرکتیا د مشرۍ تر پوړه ورساوه.

پاتې ورثه: دوه زامن څلورلورګانې.

دکندهارولایت ددعوت اوارشاد/ جلب اوجذب محترم مسئول له مورچل سره په مرکه کې :

# له مزدور رژیم څخه د را جلاکېدونکو کسانو په هڅولو او ډاډ ورکولو کي د اولس مخور مشران مهم رول لري او اسلامي امارت يې ننګه کوي

**یادښت** : درنو لوستونکو څه موده مخکي دکندهارولایت ددعوت او ارشاد / جلب او جذب کميسيون مسئول الحاج مولوي ضياء الرحمن صاحب دکندهارولایت له ټولو ولسواليو څخه ليدنه وکړه او په دغه ولايت کي يې د دعوت او ارشاد او همدا ډول د جلب اوجذب د روان بهير څخه څارنه کړي او هلته يې له مجاهدينو، د سيمي له علماء کرامو، قومي مشرانو او اولسي خلکو سره له نژدې کتلي دي.

دا چي نوموړي په دې سفر کي د دعوت او ارشاد / جلب اوجذب روان بهير څنګه ارزولی، په سيمه کي دغه بهير څومره پرمختګ کړي او د سيمي مجاهدين او عام خلک يې په اړه څه فکر کوي له مولوي صاحب سره يې په دغه مرکه کي تفصيل لوستلای شئ.

**پـــوښتـــنه** : محترم مولوي صاحب ! که د مرکې په پيل کي راته ووایاست چی تاسو د کندهارولایت څو ولسواليو ته سفر وکړ او د سفر عمده موخي مو کومي وې ؟

**ځــــواب** : موږ دکندهار ولایت يوولسو ولسواليو ته سفر وکړ چي په ترتيب سره يې نومونه دادي : بولدک، ښوراوک، ميوند، پنجوايي، غورک، خاکرېز، نېش ،کښته شاه وليکوټ، لوړ شاه وليکوټ، ارغستان او معروف او د رېګستان، ژړۍ، ډنډ، ارغنداب او دامان ولسواليو له مجاهدينو سره مو په ګاونډيو ولسواليو کي وليدل.

ستاسو د پوښتني د دوهمي برخي په اړه باید ووایم چي زموږ په دغه سفر کي عمده اهداف په لاندي ډول وه:

لومړی - د تېر کال په جریان کي د هغو اصلاحي او تربیتي پروګرامونو د نتائجو جاج اخیستل کوم چي د ژمي په موسم کي د دعوت او ارشاد کمیسیون لخوا د سیمي د علماء کرامو په همکاري په لاره اچول سوي وه.

دوهم - د سږ کال په پیل کي دکندهارولایت دټولوولسوالیو لپاره د دعوت او ارشاد/جلب او جذب کمیسیون د نویو ټاکل سویو مسئولینو د کارونو څار، تنظیم او له دوي سره د سیمه ایزو مجاهدینو د همکارۍ راجلبول.

دریم - د جلب او جذب کمیسیون د روان بهیر د لا ښه پرمختګ په موخه د سیمي له مجاهدینو سره د نیکو مشورو شریکول، مجاهدینو ته یې اهمیت او ضرورت بیانول او ددوي د مربوطه سیمو د شرائطو په نظر کي نیولو سره د جلب او جذب په برخه کي د کامیابو ترتیبونو پر جوړولو کار کول.

څلورم- په هره سیمه کي د امکان په صورت کي د اصلاحي بیانونو لپاره د مجاهدینو را ټولول.

پنځم - د سیمي له علماوو، قومي مشرانو او عامو ولسي وګړو سره له نژدې کتل او دوي ته د ددعوت او ارشاد/ جلب او جذب په برخه کي د اسلامي امارت دریځ روښانه کول او په دغه برخه کي ددوي همکاري جلبول.

**پـــوښتـــنه** : محترم مولوي صاحب ! هغه اهداف چي تاسو دخپل سفر لپاره ټاکلي وه آیا د سفر په ترڅ کي مو ترلاسه کړل ؟

**ځـــــواب** : بلې ! الحمدلله کوم اهداف چي موږ ددغه سفر لپاره په نظر کي نیولي وه دالله جل جلاله په نصرت او د سر ښندونکو مجاهدینو دقربانیو په برکت سل فیصده عملي سوه او زموږ له توقع څخه په لوړه کچه پلي سول.

**پـــوښتـــنه** :مولوي صاحب که تاسو د خپل سفر په جریان کي د خپلو فعالیتونو د څرنګوالي په اړه لوستونکو ته معلومات ورکړی مهرباني به مو وي.

**ځــــواب** : موږ چي به کومي سيمي ته سفر وکړ د هغه سيمي له مجاهدينو، علماء کرامو او اولسي خلکو سره مو جلا جلا ليدني درلودې، عامو مجاهدينو ته مو د مکاني شرائطو په نظر کي نيولو سره لوي اصلاحي مجالس دايرول او هغوي ته مو په دغو مجالسو کي اصلاحي بيانونه اورول ،مجاهدين مو خپلو مسئوليتونو ته متوجه کول او پردې ټکي مو ورباندي ډېر ټينګار کاوه چي بايد له خپل مسلمان او مجاهد پرور اولس سره د پخوا په شان ښه سلوک وکړي او د ستونزو په ليري کولو کي يې خپل ټول قوت وکاروي همدا ډول مو د مجاهدينو له مسئولينو سره ددوي په مربوطه سيمو کي د جلب او جذب د روان بهير په اړه هم خبري کولې او ددښمن په صف کي د ولاړو کسانو د را جلبولو په اړه مو ورسره هر اړخيزي مشوري شريکولې او د هر ډول همکارۍ ډاډ مو ور کاوه، له علماء کرامو سره مو هم د مجالسو په دائرولو سره د سيمي د وضعيت په اړه خبري کولې او ددوي نيکي مشورې مو اورېدې، د مجالسو په ترڅ کي علماء کرامو ته د اسلامي امارت ددريځ په بيانولو سره مو له هغوي څخه ددعوت او ارشاد/جلب او جذب په برخه کي د لاښه همکارۍ غوښتنه کوله، چي لله الحمد د هغوئ عکس العمل به مثبت وو او د هرډول همکارۍ او مرستي ډاډ يې را کاوه، د قومي مشرانو په ګډون له عامو خلکو سره مو هم مجالس دائرول او هغوي ته مو د اسلامي امارت دريځ روښانه کاوه ، هغوي ته وويل سول چي د اسلامي امارت يواځنی هدف د الله جل جلاله پرمځکه د الله جل جلاله قانون نافذول دي ، که څوک دغه قانون ته غاړه کښېږدي زموږ ورور دی او که يې څوک مخالفت کوي له هغه سره به مو مقابله ترهغو روانه وي چي يا تايب کېږي او يا وژل کېږي ، د سيمي له مخورو مو غوښتنه کوله چي د خپل نفوذ په کارولو سره ستاسو د سيمي اړوند د کرزي د فاسد رژيم عسکر که هغه اربکيان، پوليس او يا نور حکومتي کار کوونکي وي له دغه فاسد رژيم څخه را جلا کړئ او د عاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله له عمومي عفوي څخه په ګټې اخيستلو سره يې په خپل کور کي هوسا ژوند کولو ته وهڅوئ، او پدې کار سره د مکار دښمن هغه ستره دسيسه شنډه کړئ کومه چي دوئ غواړي افغانان په خپل منځ کي سره وجنګوي او په بېلابېلو نومونو د خپلو غلامانو او اجيرانو په استخدامولو سره په ګران هيواد کي د يوه اسلامي نظام د حاکميت مخه ونيسي.

**پــوښتــنه** : جناب مولوي صاحب تاسو د خپل سفر په ترڅ کي په بيلابېلو سيمو کي هم مجاهدين او هم اولسي خلک وليدل، ددوئ په خپل منځ کي له يو بل سره چلند څه ډول وو ؟

**ځـــــواب** : پردې خبره به د الله جل جلاله ډېر ډېر شکرونه ووايم چې د مجاهدينو او اولس تر منځ مطلق د مينې، پېرزوينې او اعتماد فضا موجوده وه، د مجاهدينو د سر ښندونو او د الله په لار کې د سختو تکاليفو د ګاللو قدرداني خپل مسلمان او مجاهد پرور اولس په واقعي شکل سره کړې وه او انشاء الله چې راتلونکي کې به يې هم کوي، د پورته مدعا د ثبوت لپاره د مثال په ډول د ارغستان ولسوالۍ ديوې سيمې واقعه ذکر کول کافي بولم او هغه داسې وه چې امريکايانو په يوه چاپه کې يو مجاهد تعقيب کړی وو او نژدې وه چې ويې نيسي ، پدې وخت کې يو سپين ږيری بوډا مجاهد ته وايي چې ته مه وارخطا کېږه ! ! چې امريکايان راشي زه ورته وايم چې دا زما زوی دی، پدې وخت کې امريکايان را رسېږي او مجاهد تلاشي کوي او له تلاشۍ وروسته يې د بېولو اراده کوي ،مګر سپين ږيری بوډا ورته وايي چې دا زما زوی دی !تاسو يې چيرې بوځئ ؟ امريکايان شکمن کېږي او له مجاهد څخه پوښتنه کوي چې واده دې کړېدی؟ مجاهد ورته وايي چې هو ! د مجاهد او امريکايانو ترمنځ دغې مکالمې ته دکور ښځو غوږ نيولی او دوئ هم د مجاهد د ژغورلو فکر کوي، امريکايان بيا هم شکمن دي او دغه مجاهد له بوډا سره يوځاي د بوډا کورته بيايي او بيا مجاهد ته وايي په دغو ښځو کې ستا کوروالا کومه يوه ده، څرنګه چې مجاهد په پردي کور کې ولاړ دی او پردۍ ښځې ته د کوروالا ويلو څخه سخت وارخطا دی ،په دې وخت کې ددغه کور يوه پېغله راځي او مجاهد له لاسه نيسي او امريکايانو ته وايي چې دا زما سړی دی او له ځانه سره يې کښېنوي ، د امريکايانو پردې کار يقين راځي او بيله دې چې مجاهد بندي کړي بيرته ځي او الله جل جلاله مجاهد ته نجات ورکوي.

د پورته واقعې په شان ډېرې نورې پېښې هم په مختلفو سيمو کې پېښې شوي چې ذکر کول يې دلته ممکن نه دي، له مجاهدينو سره د اولس د مينې يوه بله بېلګه چې ما پخپله وليدله دا وه ،چې د شاه وليکوټ ولسوالۍ ديوې سيمې خلکو ماته شکايت وکړ ،چې مجاهدين ولې زموږ کلي ته نه راځي !چې موږ ډوډۍ ورکړو او دلته ځانونه هوسا کړي ؟ ددوئ شکايت دمحبت شکايت وو ، دوئ دا دځان لپاره دخوښۍ او افتخار ځاي باله، چې مجاهدين يې ډوډۍ وخوري.

**پــــوښتــــنه** : کله چې امريکايانو له افغانستانه د تېښتي په موخه د خپلو بارونو د تړولو هوډ وکړ، نو په افغانستان کې يې د نيابتي جګړې لپاره پر اجيرې اردو او پوليسو سربيره د محلي پوليسو يا اربکيانو په نامه د نشه يانو، غلو او زړو توپکمارانو څخه يو

بل ظالم ځواک هم رامنځته کړ او په لږ وخت کي يې د خپل وحشت او ظلم په سبب د امريکايي بادارانو رضا حاصله کړه ، که څه هم مجاهدينو د اربکيانو دوحشت څخه د اولس د ساتنې په موخه په ځينو سيمو کي د لږ وخت لپاره عقب نشيني وکړه، خو الحمدلله ډېر ژر مجاهدينو دوئ بيرته له ډېرو سيمو و شړل او په ځينو سيمو کي اوس هم فعال دي ، څرنګه چي تاسو اکثره ولسوالۍ له نژدې وليدلې اوسمهال د اربکي مليشو حالت څه ډول ارزوئ ؟

**ځـــــواب** : څرنګه چي تاسو په خپله پوښتنه کي د امريکايانو لخوا د اربکيانو د رامنځته کولو لنډ شاليد ذکر کړ او اوسني حالت ته مو يې هم اشاره وکړه ، زه ددې خبري يادول هم اړين بولم چي امريکايانو ډېري هڅې وکړې چي دغو وحشي ملېشو ته د پاځون په نامه اولسي رنګ ورکړي او پدې ډول د عام اولس اذهان د مجاهدينو په مقابل کي په منفي اړخ واړوي ،مګر د لږ وخت په تېريدلو سره مسلمان اولس د مکار دښمن په دغه دسيسه پوه شو او مجاهدينو ته يې په خپله غېږ کي په ځاي ورکولو سره دغه وحشي ملېشي له ډېرو سيمو وشړلې، د اسلامي امارت په تشکيلاتو کي د جلب اوجذب کميسيون په رامنځته کيدلو سره ټولو هغو حکومتي مليشو ته د توبې او له مزدور رژيم څخه د را جلا کيدلو لاره خلاصه شوه چي يا د مجاهدينو له سخت فشار ، يا په خپل کور کلي کي له زيات منفور کيدلو او يا په نورو لاملونو يې له مزدور رژيم سره اړيکي پرېکول غوښتل، ما دخپل سفر په جريان کي په ډيرو هغو سيمو کي چي مخکي اربکيان پکي په زيات قوت کي وه د اربکيانو سخت ضعف او يا هم نه شتون وليد ، د غورک ولسوالي يو له هغو سيمو وه چي ډېر زيات اربکيان يې درلودل مګر اوس د مجاهدينو له سخت فشار او د جلب او جذب کميسيون له پراخو هڅو وروسته غورک هغه ولسوالۍ ده چي د ټول کندهار په سطحه يې زيات اربکيان تسلميږي يوازي په تيرو دوو مياشتو کي يې له اوياوو زيات اربکيان تسليم شوي او دغه بهير لا ګړندی روان دی.

**پـــوښتـــنه** : محترم مولوي صاحب! د مزدور رژيم د کارکوونکو خصوصاً د نظامي برخي دمربوطو کسانو په تسليميدو کي د اولس مخور کسان څومره رول لري ؟ او يا يې لرلای شي ؟

**ځــــــواب** : له مزدور رژیم څخه د را جلاکېدونکو کسانو په هڅولو او ډاډ ورکولو کي د اولس مخورو مشرانو ډېرمهم رول لرلی او هم یې لرلای شي، هغه اطمینان او ډاډ چي ددوي لخوا تسلیمیدونکو ا شخاصو ته ورکول شي اسلامي امارت ورته درناوی لري او ددوي تضمین خپل تضمین بولي.

**پــوښتـــنه** : د قدر وړ مولوي صاحب که د وروستۍ پوښتني په ډول د اسلامي امارت په تشکیلاتو کي د ارشاد او دعوت / جلب اوجذب کمیسیون د فعالیتونو د اهمیت اوضرورت په اړه رڼا واچوئ مهرباني به مو وي.

**ځــــــواب** : لومړی باید پردې نعمت د الله جل جلاله شکر اداء کړو چي اسلامي امارت ته یې مدبرانه قیادت ورنصیب کړي او د مجاهدینواو عامو مسلمانانو ددارینو د سعادت فکر یې تل کړی دی، له همدې سلسلې څخه د اسلامي امارت په تشکیلاتو کي د ارشاد او دعوت او بیا د جلب اوجذب کمیسیون داخلول خپله یو لوي نعمت دی ځکه د ارشاد او دعوت ثمره د مجاهدینو او عامو مسلمانانو اصلاح ده، او د اصلاح نتیجه د دښمن په مقابل کي د الله جل جلاله نصرت دی، موږ پردې باور لرو چي که مجاهد متقي ، مخلص او د جهاد په هدف پوه وي هغه ته الله جل جلاله د نصرت وعده ورکړې ده ، د کامیابۍ راز په ظاهري او باطني قوت کی دی چی د مسلمانانو بری په ظاهري نه بلکې په باطني قوت کي نغښتی دی نو همدا ارشاد او دعوت دی چي مسلمانانو ته باطني قوت ورکوي.

د جلب اوجذب بهیر هم هغه نبوي تګلاره ده چې د توري ترڅنګ دښمن ته دتوبې دروازه هم خلاصوي، د اسلامي امارت مشرتابه د همدې نبوي تګلارې په تعقیب او د مکاردښمن د دسیسې ( خپلمنځي جګړې ) د شنډولو په موخه د جلب اوجذب کمیسیون جوړ کړ چي لله الحمد تر اوسه په زرګونو د مزدور رژیم عسکر د یاد کمیسیون په مخلصانه هڅو ددښمن له صفوفو را جلاسوی او عادي ژوند یې غوره کړیدی.

مرکه کونکی قاري محمد یو نس ۲۲-۷-۲۰۱۳

لیکوال د اسلامي نړۍ مشهور عالم مولانا سید ابوالحسن علي ندوي (رح)
ژباړه: ش 'منصور'

# المرتضی کرم الله وجهه

## دامیر المؤمنین علی ابن ابي طالب رضي الله عنه ژوند لیک او په راتلونکي نسل یې اغېزې

### دعلی بن ابي طالب (رضي الله عنه) ورونه:

**عقیل بن ابی طالب (رضي الله عنه)**

دویم حضرت عقیل بن ابي طالب (رضي الله عنه) دی، نوموړي کنیت ابویزید و، دمکي دفتحي په وخت کې یې ایمان راوړی، په ځینو روایتونو کې راغلي چې د حدیبه صلحي وروسته یې اسلام قبول کړی، په بدر کې ونیول شو، مدینې منورې ته دبیول کیدو وروسته حضرت عباس(رضي الله عنه) دنوموړي فدیه اداکړه، په صحیح احادیثو کې ځو ځایه یې یادونه اونوم راغلی په موته غزوه کې شریک شوی، لیکن دمکې په فتحه اوحنین کې یې نوم ندی اخستل شوی، غالباً په هغو ورځو کې ناروغ و، ابن سعد پخپل تاریخ کې ددې ذکر کړی، خو زبیربن بکار له حضرت حسن بن علی(رضي الله عنهما) روایت کړی دی، چې په حنین کې درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له ملګرو(صحابوو) سره ښه کلک ولاړو.

ابوطالب پخپل اولاد کې له حضرت عقیل (رضي الله عنه) سره زیات محبت کاو، همدا وجه وه چې دقحطۍ اونیستۍ په زمانه کې چې کله رسول الله(صلی الله علیه وسلم) اوحضرت عباس (رضي الله عنه) ددې لپاره ابو طالب ته ورغلل چې دهغه داولادونو دکفالت مسؤلیت پخپل منځ کې وویشي، څو دهغه په اوږو بار دنفقې پیتې سپک شي، نوابوطالب ورته وویل: چې ښه به داوي چې تاسې عقیل ما ته را پریږدئ، دهغه نه علاوه چې نور ورونه یې تاسې چې هرډول غواړئ هغسې یې وویشئ، رسول الله (رضي الله عنه) علي (رضي الله عنه) پخپل کفالت کې واخست، اوحضرت عباس (رضي الله عنه) دحضرت جعفر (رضي الله عنه) دکفالت ذمه وکړه (الجوهرة في نسب النبي واصحابه العشرة (۲ټوک ۱۹۲-۱۹۳مخ)

حضرت عقیل بن ابي طالب (رضي الله عنه) دقریشو له انسابو څخه زیات خبر و، دهغوئ ښه اوبد دواړه یې پیژندل، په مسجد نبوي کې به خلکو نوموړي ته نسب نامو د معلومولو لپاره رجوع کوله، نوموړی سخت حاضرجواب هم و، ژربه یې خلک چوپ اوډاډمن کول، هشام بن محمد کلبی

پخپل سند له حضرت عبد الله بن عباس(رضی الله عنهما )څخه روایت کړی چې په قریشو کې څلور مشران داسې وو چې هغوئ به خلکو پخپلو معاملاتو کې دربېمګړي او قاضیان ګرځول هغه څلور تنه:عقیل ، مخرمه ، حویطب ، او ابو جهم وه.

ابن سعد وایي :حضرت عقیل دحضرت معاویه (رضی الله عنهما ) دحکومت دوره کې وفات شو ، په "تاریخ البخاري الاصغر "کې په صحیح سند سره راغلي چې حضرت عقیل د "حره " حادثې څخه وړاندې دیزید دحکومت په زمانه کې وفات شوی (الاصابه فی تمیز الصحابه تالیف شهاب الدین ابي الفضل احمد بن علي بن حجر العسقلاني ۲ټوک ۴۹۴مخ چاپ دار صادر بیروت )دغه مهال نوموړی ۹۲ کلن و ه (شرح نهج البلاغه لابن ابی الجدید لومړی ټوک ۲۵۰مخ دارلفکر دریم چاپ ۱۹۷۹ز ) دهغه کور له خلکو ډک وه ، له وفات څخه وړاندې یې دسترګو نظر لاړوه ، په لادونو کې یې ۱۲ځامن وو ، چې له هغو ئ څخه ۹ځامن یې دحضرت حسین (رضی الله عنه ) سره وو اوله هغه سره یوځای شهیدان شول ، په هغوئ کې مسلم بن عقیل ترټولو زیات بهادر اوزړور وه ، دا هم هغه مسلم دی ، چې حضرت حسین (رضی الله عنه ) ترټولو اول کوفي ته لیږلی وه ، چې ابن زیاد هلته په ډېر ظلم کولو سره شهید کړ ( الجوهره ۲ټوک ۴۱،۴۰مخ )

**حضرت جعفر (رضی الله عنه)**

حضرت جعفر بن ابي طالب (رضی الله عنه ) په هغه بختورو کې شماردی کومو چې په ابیتداء کې اسلام راوړی وه ، کوم چې سابقین اولین یاد شوي دي ، دتاریخ پوهانو وېناده :چې دمواخاة (وروروله ) نظام جوړولو پرمهال رسول الله (صلی الله علیه وسلم ) حضرت جعفر (رضی الله عنه ) حضرت معاذبن جبل (رضی الله عنه )ته ورور ګرځولی وه ، حضرت ابو هریره (رضی الله عنه ) ویلي : له رسول الله (صلی الله علیه وسلم ) وروسته ترټولو غوره انسان حضرت جعفر وه ، په بخاري کې دنوموړي په اړه راغلي :حضرت جعفر دمسکیانو په حق کې غوره انسان وه ، له خالد الحذاء عکرمه څخه روایت دی چې له ابو هریره (رضی الله عنه ) څخه اوریدلي چې درسول الله (صلی الله علیه وسلم ) څخه وروسته په زمکه ګرځیدونکو اوپه اس سورلي کوونکو کې ترټولو غوره شخص جعفر بن ابي طالب و ،داروایت په صحیح سند سره په ترمذي اونسائي کې هم شته ، بغوي دمقبري په استناد دحضرت ابوهریره دا وینا راوړي ده ، چې حضرت جعفر (رضی الله عنه ) به دمسکیانو سره محبت کاوه ، له هغوئ سره به کیناسته ، دهغوئ خدمت به یې کاوه ، اوهغوئ به دده خدمت کاوه ، له هغوئ سره به یې خبري کولي اوهغوئ به له ده سره خبري کولي ، له دي وجې رسول الله (صلی الله علیه وسلم ) په ابو المساکین سره یاد کړی و ه ، همدارنګه به رسول الله (صلی الله علیه وسلم ) ورته فرمایل "اشبهت خلقی وخلی "ته په شکل ، صورت او عادتونو دواړو کې له ما سره مشابهت لري (علامه ابن سعد په

طبقات الکبری کې لیکي: دارارقم ته د رسول الله (ﷺ) د ننوتو او د عامه دعوت د پیل څخه وړاندې حضرت جعفر (رضي الله عنه) اسلام راوړی وه.

حضرت جعفر (رضي الله عنه) د حبشي په لور هجرت کړی وه، نجاشي (د حبشي پاچا) او دهغه پیروانو د نوموړي په لاس اسلام قبول کړی وه، د خیبر غزوي وروسته چې کله حضرت جعفر (رضي الله عنه) راستون شو رسول الله (ﷺ) ورته هرکلي وو ایه، د نوموړي تندی یې ښکل کړ، او وي فرمایل: نشم ویلی چې زه نن په کومه خوشالي زیات خوشال یم د جعفر په راتلو که د خیبر په فتحه !

حضرت عبد الله بن جعفر (رضي الله عنهما) فرمایي: ما چې له حضرت علي (رضي الله عنه) څخه هر څه غوښتي هغه یې ندي راکړي خو که د حضرت جعفر (رضي الله عنه) د لحاظ یادونه مې ورته کړي نوسملاسي یې هغه څیز راکړی، نوموړی (رضي الله عنه) د رسول الله (ﷺ) په ژوند کې په ۸ کال د هجرت د جمادی الاولی میاشت کې په موته غزوه کې په ډېره زړورتیا او شجاعت سره جنګیدو تردې چې د کافرانو په صفونو ورننوت او پرلپسې یې په هغوئ توره چلوله چې ناڅاپه له اس څخه پریوت، ژر یې اس له لاندې څخه په توره وواهه خپله پلې د کفارو په ډله ورمنډې کړي او ورسره جنګیده، جنګیده تردې پورې چې شهید شو کله چې د شهیدانو په لاشونو کې د هغه جسد وموندل شو د ابن عمر و په وینا: د هغه په بدن له ۹۰ څخه زیات ټپونه وو، رسول الله (ﷺ) فرمایلي: ما جعفر (رضي الله عنه) په جنت کې له فرښتو سره په الوتو ولید، دا روایت په طبراني کې د حضرت ابن عباس دی، په دې کې دا هم راغلي چې رسول الله (ﷺ) جعفر (رضي الله عنه) په دا سي حال کې لیدلی وه چې هغه فرښته ده او دواړه لاسونه یې په وینو سره دي، دا ځکه چې په جنګ کې د نوموړي دواړه لاسونه پریکـ شوي وو.

کله چې د موته لښکر بیرته راستون شو او مدیني منوري ته نیږدې شو، رسول الله (ﷺ) او مسلمانان مخي ته وروو تل د هغوئ راتګ یې په ښه راغلاست سره بدرګه کړ، کوچنیانو هم منډې کړل مخي ته ورغلل، رسول الله (ﷺ) پخپله اوښه باندې وه وي فرمایل: ماشومان پخپلو غیږو کې کینوئ او د جعفر ماشومان ماته راکړئ، نو په دې توګه عبد الله بن جعفر (رضي الله عنه) یې راوړ د رسول الله (رضي الله عنه) په غیږ کې یې کینوه، له حضرت عایشه (رضي الله عنها) څخه روایت دی کله چې رسول الله (ﷺ) د جعفر (رضي الله عنه) له شهادت څخه خبر شو، نو په مبارکـ مخ یې د غم نښي ښکاره شوي (الاصابه فی تمیز الصحابه لومړی ټوک ۲۳۷-۲۳۸ مخ)

د جعفر کورنۍ ته یې وویل: څما د ورور اولاد راولئ! کله چې راوستل شول رسول الله (ﷺ) حجام راوغوښته، پرې یې د جعفر (رضي الله عنه) د اولادونو ویښتان لنډ کړل، او د هغوئ مورته یې

وويل:دکفالت اوپالنې له ډاره انديښنه لري ؟زه ددوئ ولي يم ، په دنيا او اخرت دواړو کې ( طبقات الکبری ۴ټوک ۳۷مخ )

په يوبل روايت کې دي چې رسول اله (ﷺ) د حضرت جعفر (رضي الله عنه) ميرمني ته وفرمايل:دجعفر اولادونه راوله ! کله چې هغوئ ټول راغلل ، هغوئ په ډېره مينه يې ښکل کړل او سترګې مبارکې يې له اوښکو ډکې شوې ،کله چې د حضرت جعفر (رضي الله عنه) دوفات خبر راغی رسول الله (رضي الله عنه) دخپل کورخلکو ته وويل :دجعفر کورنۍ ته ډوډۍ تياره کړئ ، هغوئ ته داسې خبر رسيدلی چې په وجه يې هيڅ کار نشي کولی

ځېرنه :ددې واقعې وروسته دا قاعده وګرځيده (چې دهرچا نيږدې دوستانو په کور کې مړی وشي هغه دې ډوډۍ ورته وړي )

عبد الله بن جعفر (رضي الله عنه) هغه لومړی شخص دی چې په اسلام کې زيږيدلی ، نوموړی په حبشته کې پيدا شوی دی ، او دعربو په مهربانو او سخيانو خلکو کې شماردی دهغه ورونه محمد بن جعفر ، اوعون بن جعفر وو.

حبشې ته دهجرت کولو وروسته چې کله نجاشي پاچا له مسلمانانو وپوښتل چې داځنګه دين دی چې دهغه په وجه تاسې خپل قوم پرېښود او هم بل دين نه منئ ؟هغه مهال حضرت جعفر (رضي الله عنه) دځواب ورکولو لپاره پورته شو نوموړي له خپل ځانه دځه ويلو په ځای دجاهليت نقشه په داسې الفاظو کې انځور کړه چې هوبهو دهغه ټولنې انځور يې وښود :بيا اسلام چې دهغوئ په ژوند کې کوم انقلاب راوستی وه ، هغه يې په تفصيل سره ددناشي په وړاندې کيښود ، هيڅ يوه داسې اړخ يې ونه سپړه چې له امله يې دبحث اومباحثې دروازه بيرته کېده ،اويا په وجه يې دهغو خلکو په زړونو کې چې لامسلمانان دجاهلانه دتعصب جذبه راپورته کيده ، په ځانګړي توګه هلته چې دهېواد واکمن (دچا دمجلس په تالار کې غونډه روانه وه اوپه کوم هېوادته چې دوئ پناه وروړي وه ) دنصرانيت کلک ملاتړی وه ، دنوموړي ځواب نهايتي دموقع اومحل سره مناسب اودبشري اروا پوهني ترټولو ښه بېلګه دی ،کوم چې دوموړي (دحضرت جعفر رضي الله عنه) په لوړذهانت او بيې مثال بلاغت پوهنه شاهد او دسليم فطرت ،عقلمندۍ،هوښيارۍ ،او دهغه ښايسته وينا کولو له طرز سره يې سمون لاره ، په کوم کې چې قريش په عربي قبايلو اوبنوهاشم په قريشو ځانګړی امتياز اوعام شهرت لري نوربيا

# د افغانستان اسلامی امارت
# ددعوت ، ارشاد ، جلب او جذب کمیسیون

**د جولاي د میاشتی تفصیلي راپور:**

دروان (۲۰۱۳ز ) کال د جولای په میاشت کي هم د وړاندې په څېر د هیواد په لراوبرکي دکرزي د منفور او شرېدلي رژیم سره په مختلفو برخو (اردو ، پولیسو او اربکي ملېشو ) کې په کاربوخت ډېرزیات داسې با احساسه کسان ددعوت، ارشاد ، جلب او جذب کمیسیون په زیار او د ځایي مسؤلو مجاهدینو په هڅو او و همکاریو د اسلامي امارت د حقیقت په درک کولوله د غې غلامې او مزدورې اداري نه پرېکون کړی او د افغانستان د اسلامي امارت سپیڅلي صف سره یوځاي شوي دي .

چې تفصیل یې له نیتې او د ولایاتو او ولسوالیو سره په لاندې ډول سره دی.

د جولای پرلومړۍ نیټه د پکتیکا ولایت د سرحوضې ولسوالۍ کې د اجیرې اداري ۷تنه کاکونکي او دجاني خېل ولسوالۍ کي ۱تن اربکی او د جوزجان په مردیان ولسوالۍ ۱تن او داقچې ولسوالۍ کي ۳تنه ، دننګرهار په چپرهار ولسوالۍ کي ۳تنه او دلغمان ولایت باد پښ ولسوالي کي ۲تنه او ارزګان ولایت دهراود ولسوالۍ کي ۳تنه عسکرد اسلامي امارت مجاهدینو سره یوځاي شول.

د جولای پر۲مه د باد غیس ولایت په دره بوم ولسوالۍ کي ۱تن ، دغه رنګه پر همدې نیټه د هلمند ولایت د موسی قلعه ولسوالی د کاریز په سمه کي قوماندان شین سرور له لسو نفرو او یو عراده رینجر موتر او یو میل سقیل او یو میل راکیټ لسو کلاشنکوفو اونورو ډیرو مهماتو سره د فاسدی اداری راوو ت او د اسلامی امارت سره یوځای شو.د بغلان ولایت په

مرکزي بغلان ولسوالۍ کې ۵ تنه ،دننګرهارسرخ رودولسوالۍ کې۴تنه د اجیرې اداري عسکر د اسلامي امارت له مجاهدينو سره يوځای شول .

دجولای پر۳مه د پکتیاولایت په یحی خیل ولسوالۍ کې۱تن اربکی اودننګرهارپه چپرهارولسوالۍ کې۵تنه له مجاهدینو سره یوځای شو.

دجولای پر۵مه دکندهارولایت په مربوطاتو کې ۱۱تنه عسکرد اسلامي امارت سره یوځای شول.

دجولای پر۶مه د بغلان ولایت د د اندراب ولسوالۍ کې ۱۷ تنه عسکر د اسلامي امارت مجاهدينو سره يوځاي شول.

دجولای پر۷مه د پکتیکاولایت د جاني خیلو ولسوالۍ کې ۳ تنه او دارزګان ولایت کې ۷تنه عسکر دفاسدی اداری له لیکو راجلا سول اود اسلامی امارت تربیرغ لاندی یې خپل هوسا ژوند پیل کړو.

دجولای پر۸مه هلمندولایت کې ۱تن عسکر له مجاهدینو سره یو ځای سو

دجولای پر۹مه د جوزجان ولایت د منجک ولسوالۍ کې ۳ تنه ، د پکتیا د ځمکنو ولسوالۍ کې ۱۰ تنه اود پکتیکاپه یحي خیلو او د اورماميپه ولسواليو کې ۴ تنه عسکر له اسلامي امارت له مجاهدينو سره يوځاي شول.

دجولای پر۹مه د پروان ولایت د جبل السراج ولسوالۍ کې ۴ تنه عام وګړي

د دعوت ارشاد کمیسیون جلب جذب کمیسیون د دعوت په پایله کې او د ځايي مجاهدينو په هڅونه د اسلامي امارت په قیادت جهاد ي سنګرونه ته ولاړل.

دجولای پر۱۰مه دبادغیس ولایت مرغاب ولسوالۍ کې ۵تنه ،دروزګان دچوری ولسوالی کې ۱تن، جوزجان ولایت قوشتیپه کې ۵ تنه اود پروان ولایت د غوربند سیاګرد ولسوالۍ کې ۳ تنه عسکر له مجاهدینو سره یوځاي شول .

دجولای پر۱۱مه دکندهار ولایت دارغستان اوبولدک اوغورک ولسواليو۵تنه اودهلمند ولایت دهزار جفت ولسوالی کې ۵تنه اودخوست ولایت په سپېرې ولسوالۍ کی ۷تنه پولیس حکومتي کارکونکي دمجاهدينو سره يوځای شول.

دجولای پر۱۲مه فاریاب ولایت کي ۱تن ، داروزگان ولایت کي ۱۳تنه دکابل له فاسد حکو مت څخه راجلااودا سلامي امارت سره ملګري شول. دغه راز پرهمدې نیټه دخوست د ولایت د نادرشاه کوټ د ولسوالۍ مربوط یو تن شهباز خان ولد جرنیل چې د خوست د قومي شورا غړی و د دعوت وارشاد او جلب وجذب د هلو ځلو په نتیجه له اسلامی امارت سره یو ځای شو.

دجولای پر۱۳مه د پکتیاولایت د جانیخیلو ولسوالۍ کې ۲۲ تنه اربکیان دا سلامي امارت له مجاهدینو سره یوځاي شول.

دجولای پر۱۴مه دکندهارپه خاکرزیزولسوالۍ کي ۱تن ،او۵ تنه نورحکومتي کارکونکي چي دغزنی ولایت اوسیدونکي ؤاو د ننګرهار ولایت د د حصارک ولسوالۍ کې ۸ تنه د اوردو او د پولیسو له لیکو را جلا او دا سلامي امارت مجاهینو سره یوځاي شول.

دجولای پر۱۵مه دکندهارولایت دمختلفقوولسوالیو ۲۲ تنه حکومتی کارکونکی دحقایقوپه درک له فاسد صف څه راجلااودا سلامي امارت سره یوځای شول. دغه رنګه پرهمدې نیټه د پکتیا ولایت د جاني خیلو ولسوالۍ کې ۱۷ تنه اربکیان اود ننګرهارولایت د پچیراګام ولسوالۍ کې ۵ تنه عسکر دا سلامي امارت مجاهدینو سره یوځاي شول.

دجولای پر۱۲مه۳تنه عسکر داروزګان ولایت ددهراود ولسوالی کي ۲تنه عسکر دمجاهدینوسره یوخای شول.

دجولای پر۱۷مه د بغلان ولایت د پلخمري ولسوالي په مختلفو سیمو کې ۲ تنه او د جوزجان ولایت د خانقاه ولسوالۍ کې ۴ تنه او۳تنه عسکرچي دمیدان وردګ ولایت دنرخ ولسوالی اوسیدونکی ؤ له اسلامی امارت سره یوځای سول

دجولای پر۱۸مه دهرات ولایت کي ۲۲تنه دکابل اداري سره کارکونکي ددعوة ارشاد جلب اوجذب په هڅود اسلامي امارت سره ملګري شول.

دجولای پر۱۸مه ۲۲ تنه اربکیان له یویشت میله کلاشنکوفواو ۱۱عرادوموترسیکلانو او یو پایی مخابری سره دهرات کشک کهنه په ولسوالی کي له فاسدی اداری راجلا اودا سلامی امارت ملګری سول. دغه راز د ننګرهارولایت د حصارک ولسوالۍ کې ۵ تنه او د لغمان ولایت مرکز مربوط ۵ تنه د اوردو او د پولیسو عسکر له مجاهدینو سره یوځاي شول.

دغه رازدجولای پر۱۸مه د روزګان ولایت ددعوة ارشاد اوجلب جذب په هڅو دارزګان ولایت دچوری اودهراود او چنارتوپه ولسوالییوکی ۱۴تنه مخالفین له مجاهدینو سره ملګری سول.

دجولای پر۱۹مه دجوزجان ولایت د خانقاه ولسوالی لړونده آلراباد سیمه کې **۵** تنه عسکر او **۲**تنه عسکرچي دغزني ولایت سره یې تعلق درلودد مجاهدینو سره یوځای شول.

دجولای پر۲۰مه دهلمند ولایت دهزارجفت او مارجې ۷تنه عسکراودروزګان ولایت کې ۱۴تنه چي دمختلفوولایاتو سره یې تعلق درلودد اسلامي امارت سره یوځای شول.

دجولای پر۲۱مه دزابل ولایت دمرکزاوشینکۍ ولسوالۍ مربوط **۳**تنه عسکر اوپه زابل ولایت کي شپږ نفره چي دمختلفوولایاتو سره یې تعلق درلودد اسلامي امارت ملګري سول

دجولای پر۲۲مه دفاریاب ولایت دمختلفوولسوالیو**۲**تنه عسکرد اسلامي امارت سره ملګري شول.درنګه پرهمدې نیټه **۳** نفره هریو( قوماندان ملامیراغا دبهادر زوی**۲**جمال الدین **۳**اسماعیل دبارک دین زامن )دغزنی ولایت دواغظ ولسوالي اوسیدونکي له یوه عراده رینجر موتراو۸کلاشنکوفو اویومیل پیکا ماشندار سرهکاب لاداري څخه را جلااود اسلا مي امارت سره ملګر ي شول

دجولای پر۲۲مه د جوزجان ولایت د منجک ولسوالۍ کې **۳** تنه عسکر د اوردو او د پولیسو له لیکو را جلا او د اسلامي امارت مجاهینو سره یوځاي شول.

دجولای **۲۳**مه د ننګرهارولایت مهمنددره ولسوالۍ کي۱تن اود حصارک ولسوالۍ کې ۴ تنه عسکر د اسلامي امارت مجاهدینو سره یوځاي شول .

دجولای پر**۲۴**مه د جوزجان ولایت د مردیان ولسوالۍ کي۱تن اودبد خشان ولایت د کوف آب ولسوالۍ کې یو مشهورقوماندان (محمدعطا ) داسلامي امارت سره یوځای شو. قوماندان محمدعطاتېره ورځ دیادي ولسوالۍ په اړونده سیمه کې ددعوت او ارشاد کمیسیون دهڅو او دعوت په نتیجه کې له مجاهدینو سره یوځای شو.نوموړي ۱ پیکاماشیندار، ۱ راکټ لانچر، ۱ توپ انداز، ۱ کلاشنکوف، ۸ صندوقونه غتې او وړې مرمۍ اوګڼ نورمهمات مجاهدینو ته تسلیم کړل. دغه رنګه برهمدغه نیټه په یاده شوې سیمه کي۱تن اربکی هم دمجاهدینو سره ملګری شو.

د جولای پر۲۴مه د پروان ولایت د غوربند د شینوارو ولسوالۍ په مختلفو برخو کې ۱۰ تنه عسکر د اسلامي امارت مجاهدینو سره یوځای شول.

د جولای پر۲۴مه د فاریاب ولایت ۱۱تنه حکومتي کارکونکي د حقایقو په درک کولو سره د دغي فاسدي اداري څخه رابیل او د اسلامي امارت سره یوځای شول.

د جولای پر۲۵مه د اروزګان ولایت د چهار چینو ولسوالي کي ۲تنه، او خاص ارزګان ولسوالۍ کي ۱تن عسکر د مجاهدینو سره یوځای شول.

د جولای پر۲۷مه د فاریاب ولایت د قیصار ولسوالی کي ۲تنه عسکر او د لوګر ولایت مرکزا پوند سیمه کي داجیري اردو یو تن قومندان (محمدآغا) له مجاهدینو سره یوځای شو. محمدآغا نن ورځ له یو میل وسلې سره د دعوت او ارشاد کمیسیون د دعوت په نتېجه کې له مجاهدینو سره یوځای شو. او د پکتیکا په یحي خیلو ولسوالۍ کې ۱تن اربکی له مجاهدینو سره یوځای شو.

دغه راز د جولای د میاشتي په مختلفو ورځو کي د پکتیکا ولایت په یوسف خېل، اورممای، جاني خېل، وازي خوا، خیرکوټ او شرنه ۲۲تنه د کابل اداري کارکونکي له مجاهدینو سره یوځای شول.

د جولای پر۲۸مه د کونړ ولایت کې یو نفوذي مجاهد ۲ تنه عسکر ووژل او له مجاهدینو سره یوځای شو.

د جولای په میاشت کي د اسلامي امارت له مجاهدینو سره د کابل اداري ټول یوځای شوي ۴۷۹تنه، ۷۲میله کلاشینکوفونه، ۸ثقیل ماشیندار، ۲ارپي جي راکټ، ۱۲موټرسیکلان، ۲موټران، ۳مخابرې، ۱د هشکه، ۱۱ګایځ او ۱توپنچه یې مجاهدینو ته سپارلي دي.

د اسلامي امارت سره یوځای شوو ټولو هغوته د افغانستان اسلامي امارت د دعوت، ارشاد، جلب او جذب کمیسون مشر تابه هرکلی وو ایه او د دوئ همداکاریې چي د کابل اداري سره یې پریکون و کړه یروستایه، د کابل رژیم څخه راوتلو با احساسه هیوادوالو ته جایزې او انعامونه ورکول شول او د سراو موال تضمین ورکړل شو.

# جنګي جنايات

سيد سعيد

دروان (۲۰۱۳ز) کال د جولای پر ۳مه نيټه يرغلګرو ځواکونو د شپنيو عملياتو په لړ کې د زابل ولايت د اتغر ولسوالۍ د پيتاؤ په کلي کې چاپه وهلې، ګڼ ولسي خلک يې ځورولي او شپږ تنه يې بنديان کړي دي.

د جولای پر ۴مه د فارياب ولايت د قيصار ولسوالۍ په جګدليک سيمه کې د داخلي عسکرو د درنو د زوله امله يوه ښځه او سړی شهيد او يوه ښځه او ماشوم ژوبل شوي دي.

د جولای پر ۷مه اشغالګرو د غزني ولايت په شلګر ولسوالۍ کې دوه تنه ولسي وګړي بنديان کړي دي.

د جولای پر ۸مه يرغلګرو عسکرو د غزني ولايت په مقر ولسوالۍ کې درې تنه ملکي هيوادوال شهيدان کړي دي.

د جولای پر ۹مه د کندز ولايت د دشت ارچي ولسوالۍ د حاجي قرو کلي کې اربکي قوماندان (شينا) درې تنه ملکي هيوادوال (محمد قاسم د ګجر زوی، نجيب الله د قاسم زوی او نور آغا د ابراهيم زوی) وروسته له هغه شهيدان کړي چې ياد شوي قوماندان ته يې د عشر په نامه پيسې نه ورکولې.

د جولای پر ۹مه نيواکګرو پوځيانو د زابل ولايت د سيوري ولسوالۍ د لوی شابيل په کلي کې د عملياتو پر مهال زيات شمېر ملکي هيوادوال شنکجه کړي او دوه تنه يې شهيدان کړي دي.

د جولای پر ۱۰مه د زابل ولايت د شاجوی ولسوالۍ د تاج محمد په کلي کې يرغلګرو د چاپې پر مهال زيات شمېر ولسي وګړي شکنجه کړي دي.

دجولای پر۱۲مه دهلمندولایت د گرشک ولسوالی دحیدراباداوشورکي ترمنځ په راده کي په لوبووبوخت دري ماشومان دیرغلگروپه هوایي برید کي ژوبل شوي دي.

دجولای پر۱۴مه اشغالگروعسکرو دبغلان ولایت د مرکزي بغلان ولسوالی په ذکرخېل سیمه کي دچاپې پرمهال دخلگوکورونه تلاشي کړي اوبیايې پنځه تنه ملکي هیوادوال بندیان کړي دي

دجولای پر۱۲مه یرغلگروځواکونودبغلان ولایت دمرکزي بغلان ولسوالی دزمانخیلوپه شاگولیانوکلي کي دیوولسي وگړي پرکورچاپه وهلې ،دتلاشي پرمهال یې د دغه کوریوتن غړی شهید کړی اودوه یې دبندیانوپه توگه له ځان سره وړي دي.

دجولای پر۱۷مه اشغالگروعسکرود تخارولایت داشکمش ولسوالی په چشمه مایان سیمه باندي چاپه وهلې دخلگوکورونه یې تلاشي کړي ، مالي زیانونه یې ورته اړولي اوبیایې شپږتنه ولسي وگړي دبندیانوپه توگه له ځان سره وړي دي.

دجولای پر۱۸مه نیواکگرودهلمندولایت د مارجې ولسوالی پر سیفن سیمه دچاپې په ترځ کي دري تنه ولسي وگړي بندیان کړي دي.

دجولای پر۱۸مه دهرات ولایت د کلران ولسوالی په کولاب کلي کي بهرنیواوکورنیوعسکرو چاپه وهلې ،دچاپې پروخت یې دعاموخلگوشپږعرادې موټرسایکلونه اودفصلونولپاره کیمیاوي سره سوځولې ،دغه رازیادوشوعسکرو دتلاشي پرمهال دکورونوڅخه قیمتي توکي اواته لکه نغدي پسې وړي اوبیایې شپږتنه ملکي هیوادوال دبندیانوپه توگه بیولي دي.

دجولای پر۱۹مه اشغالگروعسکرودننگرهارولایت د شیرزادو ولسوالی په وډیسارسیمه کي دیوملکي هیوادوال پرکورچاپه وهلې ،دتلاشي پرمهال یې مالي زیانونه ورته رسولي اوپه اخرکي یې دکلي ملاامام اودیادشوي کورمشر(پهلوان )اودوه زامن یې دبندیانوپه توگه له ځان سره بیولي دي.

دجولای پر۲۱مه اشغالگروعسکرو دبغلان ولایت دمرکزي ولسوالی په شاگولیان سیمه کي دچاپې په ترځ کي دوه تنه ولسي وگړي بندیان کړي دي.

دجولای پر۲۲مه(دروژې مبارکي په ۱۳مه ) دمیدان وردگ ولایت مرکزاړوند دسهاکوپه سیمه کي دکابل حکومت (سپیشل فورس عسکرو )وروسته له هغه چي موټرېي دماین ښکاراوزیان

پکي ورته ورسيد ، پرکليو الوبي رحمه ډزي کړې ، يوه ميرمن يې شهيده کړې ، وروسته يې ولسي خلګ سخت وهلي ، ځينو کورونو او د سړک د غاړې دغنمو درمندونو ته يې اورورته کړې ، ديو شمېر کورونو شيشې او الماري يې چې قران شريفونه پکې وو ماتې کړي ، او قران کريمونه يې پر ځمکه ځيني غورځولي او بيا پکې ختلي دي.

دجولای پر۲۴مه دزابل ولايت دشاجوی ولسوالۍ دموسازو په کلي کي داخلي عسکرو دعملياتو پرمهال دري تنه ملکي هيوادوال ( دکلي ملا امام (لطف الله اخندزاده )ورسره ځوان زو ی او يو بل کاريګرېې )چې په خپل باغ کې يې کارکاوه شهيدان کړي دي.

دجولای پر۲۴مه اشغالګرودزابل ولايت د شاجوی ولسوالۍ دبرانخيلو په کلي کي دچاپې پرمهال ولسي خلګ ځورولي او دملاصديق الله په نوم يو کليوال يې شهيد کړی دی.

دجولای پر۲۲مه اشغالګرو دهلمندولايت د موسی کلاولسوالۍ دکسي په کلي کي چاپه وهلې ، يو ملکي هيوادوال يې شهيد کړی او يو بل يې له ځان سره بندي کړی دی.

دجولای پر۲۵مه دزابل ولايت دشاجويې ولسوالۍ بازارته نږدې دارغنداب پرسړک دکلاخېلو په سيمه کي وروسته له هغه چې داربکيانو قوماندان (مجاهد )او ساتونکي يې په يوه چاودنه کي ووژل شول نوراربکيانو په دغه سيمه کي ولسي خلګ له کورونو رايستلي ، وهلي او بيا يې شپږتنه ولسي وګړي دماشومانو په ګډون شهيدان کړي او ګڼ نوريې ژوبل کړي دي.

دجولای پر۲۵مه دکونړولايت دمانوګي ولسوالۍ په ټنټيل سيمه کي دداخلي عسکرودهاوان يوه ګولۍ پريو کورراپرېوتلې چي له امله يې يوولس تنه ښځي او کوچنيان ژوبل شوي دي.

دجولای پر۲۷مه دپکتياولايت دځاځي اريوب ولسوالۍ په رقيان سيمه کي دکورنيو عسکرودهاوان په ډزو کي دري تنه ولسي وګړي (دوه زامن او پلار يې )شهيدان شوي او پنځه تنه ژوبل شوي دي.

دجولای پر۲۸مه د بدخشان ولايت دوردوج ولسوالۍ په تيرګران او غنيو سيمو کي دداخلي عسکرو او طالبانو ترمنځ ديوې نښتي وروسته داخلي عسکروولسي خلګ وهلي ، ځورولي او دغنمو درمندونه او تراکتورونه يې ورسوځولي دي.

دجولای پر۲۹مه د کندهارولایت دډنډولسوالۍ په کرزسیمه کي دوژل شوي قوماندان حاجي صالح زامنو دپلارغچ دولسي خلګو څخه واخیست اودیوې کورنۍ درې تنه غړي یې ( پلار اودوه زامن )شهیدان کړي دي .

دجولای پر۲۹مه اشغالګروعسکرو دکندزولایت د دشت ارچي ولسوالۍ دحاجي زرغون او حاجي سرفراز په کلیوکي دولسي خلکوپر کورونو چاپه وهلې ،ځیني خلګ یې شکنجه کړي ،مالي زیانونه یې ورته اړولي او شپږتنه یې بندیان کړي دي.

دجولای پر۳۰مه دکندهارولایت د پنجوایي ولسوالۍ دمشان د سیدانوکلي کي داخلي عسکرودروژه مات پروخت پرولسي خلګوډزي کړي دوه تنه ملکي هیوادوال یې شهیدان کړي اوشپږتنه ولسي وګړي یې ددروماشومانوپه ګډون ټپیان کړي دي.

دجولای د۳۰مي نیټې په ماښام دغورولایت د تیوري ولسوالۍ په دآنه سیمه کي اربکي قوماندان ډاکترابراهیم درې تنه قومي سپین ږیري له خپلو کورونوڅخه رایستلي اوبیایي شهیدان کړي دي.

دجولای د۳۰مي نیټې په ماښام اربکیانودزابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ دشبارد شاؤخیلوپه کلي کي یوملکي هیوادوال(احسان الله ) له خپل کورڅخه رایستلی اوبیایې شهید کړی دی .

دجولای پر۳۰مه د نورستان ولایت دکامدیش ولسوالۍ په کوټیاکلي باندي دداخلي عسکرودهاوان برید کي یوسپینږیری حاجي صاحب(خان محمد )شهید شوی دی.

دجولای پر۳۱مه اشغالګروځواکونودهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ دلوی چراهي په سیمه کي دیوملکي هیوادوال(حاجي قیوم )پرکوردیرغل په ترڅ کي نهه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

مأخذونه:[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،روهي ویبپاڼه ،لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا

غزني ولايت ته داسلامي امارت ليږل شوي نظامي پلاوي وليدل چې :

# د غزني په اکثرو ولسواليو کې د ښمن فقط د ولسواليو په تعمير او يا يو بل ځاى کې ډير کمزوری وجود د رلود چې د خپلو پوستو څخه بهرنشو راوتلاى نظامي او خوراکي مواد د هواله لارې ورته رسيدل !

**يادښت** :درنو لوستونکو دافغانستان اسلامي امارت دجهادي صفوفو دڅارنې ، مراقبت ، شکايت اوريدلو او دوضعيت دجاج اخيستلو په هدف دافغانستان ټولو سيمو ته له مرکزي نظامي کميسيون څخه هيئتونه ليږي ، ترڅو جهادي جبهات له نږدې وګوري د ولس او مجاهدينو په مشکلاتو ځان خبر کړي ، دمنطقې او دښمن وضعيت وارزوې او هراړخيز راپور يې نظامي کميسيون ته وسپاري ، ترڅو هغوئ په خپلو تصميمونو کې ترينه استفاده وکړي.

څرنګه چې دغه هيئتونه په مختلفو جهادي سيمو ګرځي او حالات په خپلو سترګو ويني ، فرهنګي کميسيون چې افغانانو او نړيوالو ته دافغانستان دربښتيني وضعيت د روښانولو دنده په غاړه لري ، دا ځل يې وپتېيله چې ددغو هيئاتو نومشاهدات او دهيواد رښتيني وضعيت ترلوستونکو ورسوي.

په دې لړ کې دلته غواړو ، دغزني ولايت حالات ددې ولايت لپاره دانتخاب شوي هيئت دغړو مولوي عبدالرحمن منير او مولوي سيد ولي له خولې درته وړاندې کړو.

## عمومي وضعيت

څومره چې مورږ وضعيت وليد او په مختلفو سيمو وګرځيدلو د غزني په اکثرو ولسواليو کې دښمن فقط دولسواليو په تعميراو يا يوبل ځای کې ډيرکمزوری وجوددرلود چي دخپلو پوستو څخه بهرنشوراوتلای نظامي او ارتزاقی مواددهواله لاري ورته رسيدل که به کله مجاهدينو ډير په تکليف کړل نود خپلوبادارانو په مټهاو دهوائي ځواک په همکاری يې ځان ساته.

مثلا د زنه خان په ولسوالی کې فقط دولسوالی په تعميرکې دښمن وجودلري هغه هم په داسي حال کې چي بهرنشي وتلای مجاهدين يي په سپکو اسلحوهم تهديدوي، په نوره ټوله ولسوالی کې دښمن وجودنلري چي داپه حقيقت کې ددوی داادعاتکذيبوی چي ګني زنخان زمورږپه لاس کې ده دارنګه دګيروپه ولسوالی کې ددوی وجودتردې هم کمزوری دی اوهمدارنګه په رشيدانو، خوګيانو اوواغظ کي ددښمن وجودکمزوری دی عوام خپل ټول مشکلات جنائي اوحقوقي شخړي اونوري دحکومت داری مسائل دمجاهدينوداداري له لاري حل اوفصل کوی اوددولت اداري ته په ورځ کې يوه قضيه هم نه راجع کيږي حتی دمرکزڅخه موضوعات دحل لپاره مجاهدينو ته راتله چي مورږته هم دهيئتي په جريان کې يوه موضوع دمرکزڅخه راغله دحل لپاره دارنګه په ګيلان کې مجاهدينو پوره تسلط درلود ناوه خومکمله دمجاهدينو په تسلط کې وه دښمن دلته هيڅ وجودنه درلود.

دکابل کندهارپرلويه لار چې مهم لاره ده کله چي مجاهدينوغوښتې وای عمليات ئی کولای شوای چي ددې لړی څخه کله چي مورږپه اندړوکې هيئتي کوله دوه دتيلوټانکر مجاهدينو ددښمن دکتارڅخه راښکته کړل.

په آب بند کې دښمن يوازې دوې پوستې لرلې اويوځای په ولسوالی کې وو خودمجاهدينوڅخه ډيرپه عذاب واومجاهدينو مسلسلي حملې وربانديې کولې چي ددې حملوپه لړکې دوی حملې زمورږدهيئتي په موده کې ددې ولسوالی عاجزه اوخاکسارو خو با تورو مجاهدينوپردښمن وکړي چي ښه کافي غنيمت هم په لاس ورغلی په يوه حمله کې چي زمادقيق په يادديی دوه عسکر مړه دوه زخميان شول يوه پوسته ئي په دښمن تخليه کړه يوثقيل يوراکټ، دوه ماشينان، يودوربين او دوې چانتې مجاهدينو له دښمن څخه غنيمت کړل.

په خوګیانوکې زموږ دهیئتي په موده کې قوه راووته مجاهدین مختته وروتل یوټانک ئې دماین خوراک شونوره قوه په ډیره وارخطایي بیرته دغزني مرکزته وتښتیدله خلاصه دا چې په دې ولایت کې دښمن په چاپواودمجاهدینو په لټون کې پاته راغلی وو یوازې په دفاعي حالت کې وه او مجاهدین په تعرضي حالت کې وه چې دا ددښمن کمزوري او دمجاهدینو قوت ثابتوي.

دغزني په مرکزکې هم دوی دمجاهدینوله لوری ترسخت فشارلاندې وچې پرهرچوک اودهري کوځې په خوله کې اوپرهره لار به یو یادوه عسکرډیري وارخطایی په حالت کې ولاړواووارخطابه یی شاوخواکتل ځکه مجاهدین دلته همیشه په ښمن برید ونه کوي.

## د غزني مجاهدین دملي وحدت ممثلین وو !

دښمن زیاتره وخت تبلیغات کوي ، چې مجاهدین د افغانستان له یوه قوم سره تړلي دي ، خو په غزني کې موږ ولیدل چې پښتانه ، تاجک او دنورو قومونو مجاهدینو دوروڼو غوندې ددښمن په وړاندې جنګیدل ، په دې سربیره دا خبره هم قطعا دروغ وه ، چې مجاهدین دهزاره قوم له وګړو سره توپیري چلند کوي.

زموږ دمشاهداتو له مخې دمجاهدینوتعلقات دنورو قومونو غوندې له هزاره وګړو سره هم بیخي ښه او دوستانه وو سیمیزمشکلات ئې په متبادل تفاهم سره حل کول دهیئت له لوری مجاهدینوته ددې اړیکودلاښه کولوهدایة وشوځکه موږپه افغانستان کې دهیڅ چاسره دنژاداوسیمی اوژبې په خاطرکوم مشکل نلرواوهرقوم اوهري سیمی اوهری ژبی ته په خپل ملی اوشرعی حقوقوقائل یواودملت شریکان اوګڼی ئی بولو.

## دولس په وړاندې ددښمن ظالمانه چلند

دغزني ولایت اربکیانوهم دنوروولایاتوداربکیانوپه شان دعوامواو ولس پرعزت اوناموس اومال باندې بې صرفې تعرضونه کول او ولس ئې ډیر نا ارامه کړی و چې په دې باره کې څه شیان موږواوریدل چې دهغویادول او لیکل زما او قلم تر توان لوړو خبره ده ځکه ډیر دردوونکي او بوږنوونکي مظالم وو ، چې دوحشي صفته او بست فطرت اربکیانو لخوا له درانه اولس سره ترسره شوي وو ، زه افسوس کوم چې خبري رسنۍ ولي

دامسائل او داربکیانو وحشتو نه را پور ته کوي ؟چي په حقیقت کي دغه دار بکیانو ټول ظلمو نه کر زي ، دده ادرې او اشغال ګرو ته منسوب دي او اصلي عاملان یې دوی دي چي دافغانستان ولس به ور سره یوه ورځ پوره حساب کوي.

## دغزني ولایت دمجاهدینو ځانګړتیاوې

دغزني ولایت مسؤلین اومجاهدین ډیر مخلص ، فعال ، تقوادار ، کمینه اوعاجزه خلک وښه نظم ئي ووباتدبیره ،باتدریبه ، اتفاق اووحدت ئی فوق العاده ووخپل منځی اختلاف پکې ډیرکم وځکه دلګۍ ئی محدودي وی اخلاص او وفا داري ئي دامارت سره عمومي مجاهدینولرل.

مجاهدین ئی اکثره طالبان وه خصوصاګیلان چي ډیرو فدایانوددې ولسوالۍ ځانونه دالله پردین په مختلفوځایوکې قربان کړی دی الله دی اجرعظیم ورنصیب کړی ، په غزني کې تاجکواوپښتنومجاهدینواوړه په اوږه ددښمن مقابله کوله یعنی قومی توپیرونه پکې نه ودمادیاتوشوق ئی کم وودامارت دمشرتابه فرامینوته ئی پوره درناوی درلوداودسیمي دمسؤلینوهم اکثرومجاهدینوترډیره حده اطاعة کاوعملیات ئی ترډیره حده هماهنګ وپه یوه ولسوالۍ کې به چي به جنګ کیدودبلي ولسوالۍ مجاهدینوبرخه کې اخسته دیوبل په کاروکې په عمومي توګه مداخله چانکوله الحمد لله په غزني ولا یت کي دمجاهدینو قوت په هر لحاظ ډیر ښه وو مجاهدین یې ډیر زیات وه چي هریسیمو ته به ورغلو دومره مجاهدین به وه چي فکر به کیدی چي دغزني مجاهدین ټول هم دلته را ټول سوي خو هغه به په هره سیمه کي په داسي قوت کي وه.

دسیمیزو مسؤلینواومجاهدینوزموږدهیئتي اومشرتابه شکریه اداکوله زموږد هیئتي شخه مسؤلینومننه وکړه اودائی دمشرتابه پرځان شفقت وباله چي زموږد کاروخت په وخت جاج اخلی اوموږته شرعی سپیڅلی هدایات رالیږی اوزموږ نمګړتیاوی اونقصانات راته په ګوته کوی اوموږته مشورې راکوی اومشورې راځخه اخلی اوداکارئي دروسانو خلاف دجهاد په نسبت ددې جهاد ځانګړتیااو خصوصیت وباله اوموږته ئی ژمنه وکړه چي ان شاء الله ستاسو هدایات به مکمل عملی کوو.



# ستر محقق، علامه ابن عابدين شامي رحمه الله

محمد مدثر

دعلامه شامي رح اصلي نوم محمد أمين و ، خومشهور په ابن عابدين سره و ، عابدين دنوموړي شپږم نيکه و .

او دنسب سلسله يې په دي ډول ده: محمد أمين بن عمر بن عبد العزيز بن أحمد بن عبد الرحيم ابن نجم الدين بن محمد صلاح الدين الشهير بعابدين، المعروف بابن عابدين.

علامه شامي رح په اووه ويشتمه پيړۍ کې له امام جعفر رحمة الله سره أو په درود يرشمه پيړۍ کې له فخر موجودات محمد مصطفى صلى الله تعالى عليه وسلم سره يوځاى کيږي .

علامه شامي رح په يوه لس سوه اته نوي [۱۱۹۸] هجري قمري کې د شام په دمشق کې زيږيدلی دی. همدلته يې وده کړي ، اوکله چې دزده کړي شوی نولمړی يې قرآن کريم حفظ کړی دی ، اوعجيبه دا چې دقرآن کريم حفظ يې هم په خپله بې استاذه کړی ،

## په ديني علومو پسي سفر

تقدير کې د هغه په اړه ډير څه ليکل شوي و ،هو ؛هغه به دعلمي نړۍ يو داسې محقق وي چې ښايې دزماني په مخ يې له ده وروسته ساری ونه ليدل شي .

يوه ورځ دخپل پلار دتجارت په استوګن ځای کې ناست و ، اودقرآن کريم تلاوت يې کاوه ، يونا اشناکس راښکاره شو اوماشوم ابن عابدين ته يې وويل: داځای دقرآن کريم دتلاوت نه دی ،دلته خلې سوداوي کوي ،خلک قرآن کريم ته غوږ نه نيسې ، چې په دي سره ګنهګاريږي. اوبل ستاسو قرائت هم ښه نه دی ، دتجويد غلطي لري.

دعلامه شامي رح په زړه دي خبري داسې اثر وکړ چې سمد ستي ولاړشو ، اودعلم په لټه کې شو ، لمړی يې غوښتل چې دقرآت يو استادو مومي ، يوچا ورته ،شيخ القراء علامه سعيد الحموي معرفي کړ ،علامه شامي رح سيده دهغه ميني ته ورغی اوله نوموړي استاذ څخه يې د تجويدأوقرأت علوم ولوستل اوترهغه همالته پاته شو چې دغه علوم يې پای ته ورسول ،

علامه شامي رح دواړاندينيو علومو څخه دفراغت وروسته په نورو علومو لکه صرف ، نحو اوفقه باندي مشغول شو ، اوبيا دعقلي علومو لپاره شيخ اميرالمصري ته ورغی ، دمعقولاتو دتحصيل وروسته يې دحديث اوتفسيرعلوم له شيخ سيّد محمد شاكر السالمي څخه ولوستل اووروسته يې له الشيخ محمد الكزبری څخه هم زده کړي وکړي ، اوله نوموړي څخه يې دعلومو دتدريس اجازه هم ترلاسه کړه .

علامه شامي رح دظاهري علومو دزده کړو څخه وروسته دتصوفو علوم هم حاصل کړو ، چې ورسره دعلم په ميدان کې علامه شامي رح يوځلانده ستوري په ډول وځليده .

## دفراغت نه وروسته دعلامه شامي رح ژوند :

علامه شامي رح خپل ټول ژوند دالله تعالی په ذکر ،عبادت،درس تدريس ،افتاء،او دکتابونو په ليکلو تيرکړی. ده خپل ژوند همدغه اعمالو ته وقف کړی ؤ ، البته چې کله به درمضان المبارک مياشت داخله شوه نوهره شپه به يې يوځل دقرآن عظيم شان ختم کاوه .درمضان المبارک نه علاوه به هم نوموړي عالم زياتره شپه په ژړا ، تلاوت ، اوعبادت باندي تيره وله .

## دعلامه ابن عابدين رح تصنيفات

ددي ستر محقِق علامة ابن عابدين رح ليکنې أوتصنيفات ترشلو اوړي ، خودهغه هره ليکنه داسې په زړه پوري اوله تحقيق نه ډکه ده چې ساری يې نه ليدل کيږي ، دده هره ليکنه خورا په زړه پوري اوله علمي منافعو پيمانه ده ،دنړی ګوټ ګوټ کې يې مسلمانان له کتابوڅخه استفاده کوي

همدا راز دعلامه شامي رح په علمي ليکنو سربيره په علم تصوفو کې هم ډيري ليکنې کړيدي ،دبيلګې په توګه:يوه رساله يې(داجابةالغوث ،ببيان النقباء ونجماء ولأبدال والأوتادوالغوث )په نامه ده ،هغه دارساله يواځې ديوې پوښتنې په ځواب کې ليکلي،

همدارازیې یوه بله رساله (دسلّ الحسام الهندي لنصرة مولاناخالد النقشبندی) په نوم لیکلي ،دغه رساله یې دهغه اعتراضاتودرد په لړ کې لیکلي چې په علامه خالد نقشبندي رح باندې ځینو معاندینو کړې ؤ ، خبره دا ده چې کله دشام سترعالم ضیاء الدین خالدنقشبندي له هندوستان څخه بیرته شام ته ستون شو اوله هند څخه یې دمیرزا مظهرجان جانا ن رح دتصوفو علوم نقل کړل ،دوخت معاندینو په هغه بې ځایه اعتراضات کول نو علامه شامي رح دهغو ټولو اعتراضاتو خورا ښه اوپه زړه پوري ځوابونه ولیکل .

## دعلامه شامي رح دوه عجیبه پیښې :

یوه ورځ علامه شامي رح له خپل استاد سید محمد شاکررح سره دځیني علماو خدمت کې چې له هند څخه یې تشریف راوړی ؤ حاضرشو ،کله چې دوئ له شیخ محمد عبد النبي رح سره ولیدل نو استاد علامه سید محمد شاکر رح کیناست او علامه شامي رح همدلته نږدې ودریده اوداستاد مچنې یې په لاس کې وي.دادشاګردانو عادت ؤچې داستاد سره به چیرته تلو اوچې کله به استاد کیناست نو دوئ به یې دمچنو ساتنه کوله ، یاهم دتبرک له امله به یې داستاد مچنې په لاس کې نیوي .بس په دغه حالت کې دشیخ محمد عبدالنبي رح ورپام شو اوعلامه محمد شاکر رح ته یې وویل : چې دغه هلک ته ووایه چې کښېني ، کنه وي زه هم ترهغه نشم کیناستی.اوبیاعلامه شیخ محمد عبدالنبي رح زیاته کړه: چې ډیرژر به خلک ددغه ماشوم لاسونه ښکل کړي ،اودده فایده به ډیره عامه شي ،ځکه په دي ماشوم کې دآل بیت نور له ورایه ښکاري..

دوهمه واقعه

دعلامه شامي رح یو کاکاوچې نوم یې شیخ صالح و ، لوی ولی الله اوصاحب الکشف و ، یوه ورځ یې دعلامه شامي رح مور ته ویلي ؤ چې لوی خدای ج به یو زوی درکړي اونوم به یې محمد أمین وي ، کله چې محمد امین وزیږیده نو علامه صالح و ویل: چې الله تعالی ددې ماشوم په وجود کې سرداري ایښې ده .دعلامه شامي رح په هکله نوري هم داډول واقعې شته چې موږ یې دلته په همدغه بیلګو اکتفاو کړه .

ردُّالمحتار

ردالمحتارچې په عربو کې ،په حاشیه ابن عابدین سره زیات شهرت لري ، دعلامه شامي رح له ځانګړو کتابونو څخه یو خاص اوپه زړه پوري کتاب دی ، خورا له ظاهري اومعنوي

ښیګڼو څخه ډک دی ،یو داسې تحقیق دی چې په فقه کې عموما او په فقه حنفي کې خصوصا ساری نه لري ،دوستان خو څه چې ډیری معاندین هم ددې کتاب په جامعیت ،تحقیق ، او مقبولیت قائله دي ، همدغه کتاب دی چې دفتوی په ماخذ کې عمده رول لري بلکه ترڅو چې دعلامه شامي رح تحقیق نه وي نقل شوی علماو ته هغه فتوا داعتماد وړنه وي .

## رحلة اووفات يې

علامه شامي رح په دولس سوه دوپنځوست ۱۲۵۲ هق، کې دڅلورپنځوست کلنۍ په عمر له دي نړۍ څخه سترګې پټې کړي دي روح دي ښــــــادوي. انالله وانااليه راجعون.

## دعلامه شامي رح تصانيف اوباقيات الصالحات

علامه شامي رح ډيري ازښتناکي ليکني کړي دي اودخورا ارزښتمنو کتابونو ذخيري يې امت ته پرې ايښې دي چې دبيلګي په ډول به يې لاندي دڅو کتابونونومونه وليکو

ردالمحتار على الدرالمختار

منحة الخالق على بحرالرائق

شفاء العليل ووبل الغليل

العقود الدرية في تنقيح الفتاوى الحامدية

نشرالعرف في بناء بعض الاحكام على العرف

التحاف الذكي

عقود رسم المفتي

وشرح عقود رسم المفتي

حواشي شرح منار

حواشي مطول

حواشي بيضاوي

مجموعه رسائل ابن عابدين

اوداسې نور .........




لیکوال ابومنصور هاشمی

ددې فاني دنیا دازمایښتونو په ډګر کې له پیله همدا رواج دی چې دزورور او کمزورو تر مینځ جنګونه، جګړې، مقابلې اوټکرونه راځي په همدې جریان کې بیا ډېر وارې هغه خلک چې دغرور برجونه یې تر اسمانه رسیدلی وي یوناڅاپه مخ په مځکه راونړیږي اوډېر همداسې خلک چې خپل کلي کې هم څوک حساب نه پرې کوي دداسې اتل په توګه راښکاره شي چې په نړۍ کې نوې نقشې کاږي، ددې ټولو انقلابونو اوتحولونو تر شا دتقدیر لاس دی، څرنګه چې ددنیا نظام الله ﷻ په اسبابو موقوف کړی اودنیا یې دار الاسباب ګرځولی او په ټولو اسبابو کی موثر ذات هم همدی دی الله د فلاح او کامیابی لپاره هم اسباب پیدا کړی څوک چی د کامیابی اسباب استعمالوی الله پاک کامیابی هم ور کوی څوک چې د تباهی هلاکت اسباب استعمالوی نو نتیجه هم هلاکیږی. دزورورو او کمزورو ترمینځ د مقابلې په وخت کی تل زورور په خپل زور اوطاقت مغرور وی پلان احتیاط او تکتیک ته ډیره اړتیا نه احساسوی بالعکس کمزوری بیا هره کړنه او قدم پور ته کولو لپاره ډیر فکر کوي ټول اړخونه سنجوی او پلان تر تیبوی، له همدې امله مغرور ځواکونه تل د ډیرو تلفاتو او ډیرو ستونزو سره مخ کیږی.

غربی نړی خورو وحشی صلیبی یرغلګرو زمونږ په هیواد افغانستان باندی ډیر په جرئت او زوړ تیا بی رحمانه تجاوز وکړ او دجنګ په عواقبو نتایجو هیڅ سم فکر نه وو کړی ، که کومه ارزونه یې کړی وه هم دخپل قوت په رڼا کی یو بیطرفه ارزونه وه چې کامیابی موحتمی ده ، او دجنګ په لمړیو مرحلو کې دوی ربنتیا هم پوخ یقین وو.

خودالله جل جلاله ارادې څخه نه وو خبر د الله پاک اراده څه بل څه وه الله جل جلاله غوښتل چی د ابراهیم عیله السلام نمرود، دموسی علیه السلام دفرعون اودمحمد ﷺ ابوجهل تاریخي درس یو واربیا دپنځلسمې پیړۍ انسانانو ته د ننداړې په ډول وړاندې کړی تر څو نړۍ عبرت ترې واخلي او خپل خالق ته غاړه کیږدی .

الله جل جلاله ټول د فلاح او کامیابی اسباب همغه چاته وروښودل چه د ظاهری اسبابو له مخی په ننی نړۍ کی څه خاص ډول حساب نه پری کیده، د اسلامی امارت مجاهدینو د لوی الله جل جلاله په الهام او نصرت په ډیر ماهرانه ډول داسې کامیاب تکتیکونه ایجاد کړل او په کار یی واچول چې دهغی په نتیجه کې د موډرنی ټکنالوژۍ سره د وحشی لښکرو غرور د خاورو سره خاورې شو اوس دوی ډیر فکر ته اړ شوي ، ډیرو کوچنی کوچنیو عملیاتو لپاره ډیره زیاته امادګی نیسی، او ټول هغه تکتیکونه استعمالوی چه مخکی د کمزورو وو ، د بېلګې په ډول کمین کې پټ کیناستل، غنمو جوارو فصلو کې پټیدل ، لباس بدلول، کله کله عادي موټرو کې پټ ګرځېدل، اطلاعاتی وسایلو نصبول منفجره توکو ځای په ځای کول ، دملکی خلکو ځان سره کینول ، په زور او جبر سره چی د سپر کار ترې واخلی وغیره .

الحمدالله دمجاهدینو فعالیتونه ډیر زیات شوي او علاني شوي اوټول تکتیکونه په ډیره مؤثره توګه استعمالوي اود الله جل جلاله دنصرت نښې په هر ډګر کې په ډاګه څرګندیږي.

الله جل جلاله د فلاح لپاره معنوی اسباب چی د اعمالو اصلاح، اخلاص او د اذکارو، وظایفو پابندي ضر وري ګرځولی، همدغسې ظاهري اسبابو ته هم توجه او ورڅخه کار اخیستل ضرور دي مخکې له دې چې موږ د جرائت او زوړور تیادوجې نه زموږ پلان کمزوری شي احتیاطی تدابیر موضعیف شي ټولو مجاهدینو دحق دلاری اتلانو دېته پام ضروری دی چه د جرئت او زوړور تیاله وجې نه پلان تکتیک ته شانه کړي. داچې اوس دموډرنې ټکنالوژۍ دور دی، الله پاک داسی لاری چارې پیدا کړي چې دهغې په واسطه د دوی ټوله ټکنالوژي بی تاثیره او مهمله ګرځي.

۱ – لومړی د ټلفون استعمال څخه ځان وساتو.

۲ – دویم د مجاهدینو جنګونه غونډي خوځښتونه ټک راتګ تشکیلات بایدجبهه یی شکل غوره نه کړي چریکي اووسي.

۳ – دښمن ډول ډول وسایل نصب کوي،دغو وسایلو ته باید پام وشي او پلټنه یې وشي د بیلګې په ډول د سیمې ځنګلاتو بوټوپه شکل کمرې جوړوي او نصب کیږی .

دمنطقې دډبرو په شکل کمرې نصب کوي چې توپیر یې د ډبرو سره نه کیږی . داوسایل داسې ځایونو کېږدي چې دهغې ځای څخه د دښمن پر مر کزونو عملیات کیږی . یادمجاهدینو د مرور او عبور لارې یا د مطلوب مجاهد کور د ښار لپاره چې تګ راتګ یې کنترول کړي دغه وسایل ، کمرې ویډیوعکاسي کوي، دمجاهدینو پیژندګلوي ترې کوي، عسکونه ترې اخلي، یادغه عکاسی مستقیما د صلیبیانو مر کزوونو ته انتقالوی .

۴ – دجګړې په سیمه کې تیار شوي چاودیدونکي توکي پریږدی چه چاودنی په حر کت ور کولو سره انفجار کوي یادلیرې څخه د کمری په واسطه شارل کیږی چه څوک ورنیږدی شی دریموټ په واسطه انفجار ور کوی دغه چاودیدونکي توکي یوائې دلوبې اسلحې په ډول نه دی لکه میزایل یادهوان،مرمی، دغیره چه سړی ور ته متوجه وی بلکی ډیر کوچنی واړه وسایل هم شته دا څو ورځی مخکی د خوست ولایت دصبریو ولسوالۍ کې ددوښمن د عملیاتو په ترڅ یوه کڅوړه کې څلور شاجورې د کلاشینکوف،اویوشرید د پیکامرمی پریښودل شوی په عام ډول داسی ښکاریده چی دمجاهدینواسلحه به وی ، دغه مرمی چې مجاهدینو ته په لاس ورغلې الحمدالله مجاهدین دی خطر ته متوجه شول بی له دی چه چاته کوم زیان ورسوی ډیر په وخت یی ور ته پام وکړ هغه مرمی خلاصې کړای شوې او دهغی بارود معاینه شول په دغه مرمیو کی دلیږدونکو بارودو په ځای منفجره (چاودیدونکی) بارود ځای په ځای شوی وو چه محض ډز کولو په وخت د اسلحی او مسلح له منځه وړلوسبب کیدای شول . دبارودو کمیت کیفیت ډیر لوړ وو څه امتیازي بیلګی هم نه وی پکی دعادي مومیو په څیروی شکل او رنګ یې درلودو محض وزن یې لږ زیات وو لویو مرمیو ته هرڅوک متوجه کیدای شی او احتیاط ورڅخه کوی البته د کلاشنکوف او د پیکا مرمیو کی داسی مرمیو عیارول او هغی ته ځیر کتیا او توجه د پام وړ خبره ده ، د نظامی کمیسیون د هدایاتو سره سم هر څوک چه نااشنا وسایل چی خطر ولری او ګوری باید ټول مجاهدین پرې په وخت خبر کړل شی .

# نور ستا قضاوت !

## د ننګرهار شېرزادو کې د خبریالانو د سترګو لیدلی حال !

**ډلې ډلې مسلح طالبان په دولتي رینجرو کې
په شیرزادو ولسوالۍ کې په رڼا ورځ ګرځي**

جلال اباد (پژواک ۱۴ زمری ۹۲ ):

د ننګرهار د شېرزادو په ولسوالۍ کې د تېرې اونۍ له جګړې وروسته هر لوري ته دولتي سوځول شوي ټانکونه او رینجرې لیدل کېږي او ډلې ډلې وسله وال طالبان په رڼا ورځ په ټوله ولسوالۍ کې ګرځي.

بلخوا د دې ولسوالۍ یو شمېر اوسېدونکي وايي، چې درې کاله وروسته یې سیمې ته د حکومت له راتګ سره امنیت خراب شوی او خلکو ته یې مرګ ژوبله واوښته.

د شېرزادو خلک دغه شکایت وروسته له هغه کوي، چې تېره اونۍ په دې ولسوالۍ کې د پراخو عملیاتو په ترڅ کې ګڼ شمېر پولیس ، عام وګړي او........ ووژل شول.

دغه جګړه او عملیات د شېرزادو ولسوالۍ د مرکي خېلو په سیمه کې ترسره شوي وو ، د زمري په ۱۳مه مو د شېرزادو ولسوالۍ د جنګ ځپلې سیمې مرکي خېلو څخه لیدنه وکړه.د شېرزادو مرکي خېلو ته له رسېدو سره سم نهه تنو مخ پټو وسله والو ودرولو ، له پوښتنې وروسته یې ځانونه معرفي کړل چې طالبان دي، خو کله چې پوه شول خبریالان راغلي اجازه یې راکړه.

شېرزادو ولسوالۍ چې څومره رانږدې کېده ، هغومره د بارودو بویونه زیاتېدل، هره خوا خاموشي خپره وه ، اخر د مرکي خېلو ستر کلي ته ورسېدو ، په لومړنۍ ځلورلارې کې




مو د پولیسو پر یوه سوځېدلي ټانک سترګې ولګېدې، له ټانګه شپږ اوه ځوانان راټول وو او پر رنجونو يې ترې او سپنې د کباړ د خرڅ لپاره بېلولې.

د دې سیمې یوه اوسېدونکي اختیار الله پژواک خبري اژانس ته وویل، چې د ویجاړ شوي ټانګ چلوونکی پولیس څو قدمه وړاندې د طالبانو پر ډزو کې ووژل شو.

له دغه ټانګ سره په لس متره کې د ملي پولیسو یو رینجر موټر هم چپه مخ پروت و، اختیارالله وویل، چې د دغه موټر چلوونکی د طالبانو له لوري ژوندی نیول شوی دی.

د څلورلارې لوېدیځ لور ته په څو متره کې یو بل د سیمه ییزو پولیسو پوځي موټر چې نیمايي د کلي ځوانانو کباړ کړی و، پروت و، دغه سیمه صدرخېل دوه بندی نومېده، له دغه رینجر موټر لږ وړاندې یو بل رینجر موټر هم سوځېدلی پروت و.

د څلورلارې شمال خوا ته د ستر کلي چکاو په نوم یوه سیمه ده، دې سیمې ته په لاره بل سوځېدلی رینجر پروت و، پر دغه ټانګ هم ځو ځوانان راچاپېر وو او وسپنې یې ترې د خرڅون لپاره بېلولې.

شېبه مزل مو نور هم وکړ، د ستر کلي چکاو ته ورسېدو، د چکاو کلي په سر کې یو جومات و. ؛د دغه جومات ملا امام پژواک اژانس ته وویل، چې شاوخوا درې کاله وړاندې یو ځل حکومت دغې سیمې ته راغلی و، خو بیا یې مخه نه وه کړې.

د دې سیمې په لاندې خوړ کې هم درې سوځېدلي رینجر موټر پراته وو، له دې سل متره وړاندې په خوړ له یوه کرولا ډوله موټر سره پنځه مخ پټي طالبان ولاړ وو، مګر دا ځل یادو طالبانو پر موږ کوم غرض ونه کړ.

له خوړ نه پورې غاړې د سیمه ییزو پولیسو درې نور رینجر موټر ولاړ وو، چې له هغوی هم ګڼ ځوانان تاو وو او هر یوه یې د ځان لپاره وسپنه راویستله.

یوه هلک پژواک ته وویل: ((غواړم دا وسپنه خرڅه کړم او ځان ته د اختر خرچه پیدا کړم.))

د دې سیمې اوسېدونکو ویل، چې د دغه دیارلس رینجر موټر او ټانکونه وسله والو مخالفینو روغ نیولي و، خو کله چې د دولت له لوري طیارې راپورته شوې نو وسله والو ورته اور واچاوه.

د ستر کلي د چکاو اوسېدونکي ګل فقیر پژواک ته وویل، چې طالبانو څلور رینجر موټر روغ وړي او پنځه سیمه ییز او ملي پولیس یې هم ژوندي وړي دي.

هغه زیاته کړه: ((په پولیسو کې یې یو تن بېرته راخوشی کړی، هغه لېونی شوی و او نور ورسره دي.))

له دې سیمې شاوخوا تر یو نیم ساعت پلې مزل وروسته کله چې بلې سیمې ته ورسېدو، نو هلته لسګونه مخ پټي مسلح طالبانو مېشت وو.

له یادو ټولو وسله والو سره راکټ، پیکا، کلاشینکوف، برچې او داسې نور جنګي وسایل وو، او ځانونه یې داسې چمتو کړي وو، لکه چې همدا اوس جنګ ته روان دي، په دې ډله کې مو د وسله والو درې قوماندانان هم ولیدل.

یو یې ځان زرقاوي معرفي کړ، چې څه موده مخکې یې دولتي ځواکونو د وژل کېدو خبر ورکړی و، ورسره په خواکې یو بل سپین ږیری کشمیرخان قوماندان ولاړ و، له نوموړي څخه اته وسله وال مخالفین راټول وو او ده ورته خبرې کولې.

د کشمیر خان د وژلو خبر هم څه موده وړاندې یو شمېر رسنیو د دولتي سرچینو په حواله خپور کړی و. په دې ډله کې ډېری طالبانو د رینجر موټرو پر سوځېدو خپل ژور خفګان څرګند کړ، زرقاوي پژواک ته وویل، رینجر موټر د دغه هېواد شتمني ده، هغه که له دولت سره وي او که له دوی سره خو د دغې خاورې مال دی او په کار ده چې ساتنه یې وشي.

یو شمېر طالبانو ویل چې دوی نه غوښتل په شېرزادو ولسوالۍ کې جګړه وکړي خو د یوه قومي مشر له لوري د دوی یو ملګری ووژل شو او کله چې دوی د هغه مشر پسې ولاړل نو حکومت پر دوی حمله وکړه او یاده مرګ ژوبله رامنځته شوه.

په دې سیمه کې د وسله والو مخالفینو یوه بل قوماندان پژواک ته وویل، چې په یاده نښته کې د دوی پنځه ملګري شهیدان شوي دي.

هغه ویل: ((که څوک وایي چې دا دروغ دي همدا اوس هدیرې ته ځو او وبه ګورو چې پنځه قبرونه دي او بس.))

نوموړي وویل، چې د سیمه ییزو پولیسو قوماندان او یو شمېر نور ملګري یې پر یوه کور ور ننوتي وو او ماشومان یې د سپر په توګه وکارول.

ده وویل: ((په نښته کې شاوخوا ۲۸ پولیس وژل شوي او همدومره نور ټپیان شوي وو.)) د یادو لسګونو وسله والو په ملتیا له دغې سیمې مو یوې بلې سیمې ته شاوخوا دوه ساعته مزل وکړ، له رسېدو سره سم مو د ملي پولیسو پر شین رینجر موټر سترګې ولګېدې چې طالبان په کې ناست وو.

پر یاد رینجر موټر یې لیکلي وو: ((د خوګیاڼو امنیه قوماندانی)) د رینجر موټر پر نمبر د طالبانو له لوري ختې مښل شوې وې، څو نمبر یې ونه پېژندل شي.

د وسله والو طالبانو مشر غوښتل چې یوې بلې سیمې ته مو بوځي تر څو پنځه سوځېدلي او درې نور روغ رینجر موټرونه هم راباندې ووینې، خو د وخت د کمښت له امله مو د هغه غوښتنه ونه منله.

نوموړي زياته کړه، چې ټول يې اتلس رينجر او ټانکونه سوځولي او څلور رينجر موټر روغ له دوی سره دي.

د نيول شوو پوليسو د برخليک په اړه مو څو ځلي وپوښتل خو چا يې ځواب نه راکاوه، اخر يوه طالب وويل، چې پر يادو کسانو اسلامي امارت فيصله کړې، ده وويل چې د ملي اردو يو ټپي سرتېرى هم له دوی سره بندي دی او له نور څه ويلو يې ډډه وکړه.

بلخوا د ننګرهار د والي وياند احمدضياءعبدالزي پژواک اژانس ته د دې موضوع په اړه له څه ويلو ډډه وکړه او زياته يې کړه چې د يادې موضوع په اړه د امنيه قوماندانۍ د امنيت له امر سره اړيکه ټينګه کړئ.

خو د ننګرهار د امنيه قوماندانۍ د امنيت امر سمونوال معصوم خان هاشمي هم د يادې موضوع په اړه له څه ويلو ډډه وکړه.

ياده دې وي چې په شېرزادو ولسوالۍ کې ياده نښته هغه وخت رامنځته شوه چې د قومي مشر حاجي وردګ کور د وسله والو مخالفينو له لوري محاصره شو او دولت غوښتل چې ياده محاصره ماته کړي.

د ننګرهار د ولايتي شورا غړی ذبيح الله زمری وايي، چې په شېرزادو کې د پوليسو د زياتو تلفاتو اوښتلو مسوول د امنيه قوماندانۍ او ولايتي ادارې چارواکي دي.

هغه پژواک ته وويل، چې شېرزادو ولسوالۍ ته پوليس له پلان پرته تللي وو او هلته له څو ځايه کمين سره مخ شوي وو.

ده زياته کړه: ((پلان جوړوونکي بايد محاکمه شي، ځکه پلان درست نه دی جوړ شوی، په پلان کې دفاعي قوه سنجول کېږي))

د نوموړي په وينا ،چې په دې وروستيو کې په ننګرهار کې ګڼې امنيتي پېښې رامنځته شوي او لامل يې د ولايتي چارواکو بېغوري ده، دی پر مرکزي ادارې غږ کوي چې د ننګرهار په اړه دې تصميم ونيسي